# مورچل

## کالګڼه

دمورچل دا کالګڼه!!

اتم کال، دوولسمه ګڼه، پرلپسې (۷۶) یمه، صفرالمظفر (۱۴۳۶) هق، دسمبر (۲۰۱۴) ز کال

مورچل...رزم بندي!

طالبانو امریکایان مات کړل!

دمسلمان ژورنالست ځانګړنې!

دیکټي اولیکوالۍ، علمي آرونه!

نامتو مسلمان فاتحین!

نګاهی برابعاد مختلف روند جهادی ...

مورچل مجله دتېرو خپرېزو کلنو په هینداره کې!

اسلام کې دصحافت (ژورنالیزم) منزلت!

داسلامي امارت د جهادي نظم ځانګړتیاوې!

۲۰۱۴ میلادي هغه کال چې ناټو په کې ...

د فکري او قلمي جهاد مورچل !

افغانستان - قبرستان امپراتورها!

آیا امریکایي بمبارۍ به د کابل شړېدلې اداره...

مورچل دمطبوعاتو په ډګر کې!

راهکارهای تقویت امور جهاد فرهنګی

په روان جهاد کې د فرهنګیانو ونډه!

په ننۍ نړۍ کې درسنیو اهمیت اودمسلمانو قلموالو مسئولیت !

محترم استاد شپونکی له مورچل سره په مرکه کې!



اتم کال دولسمه گڼه، پرلپسې ۷۵ گڼه، صفر المظفر۱۴۳۶ هـق، دیسمبر ۲۰۱۴

| گڼه | مطلب | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | دمورچل دا کالگڼه........................ | ۱ |
| ۲ | نگاهی بر ابعاد مختلف روند جهادي.................. | ۳ |
| ۳ | د فکري او قلمي جهاد مورچل.................... | ۸ |
| ۴ | مورچل مجله د تېرو خپرونو په هنداره کې......... | ۱۰ |
| ۵ | طالبانو امریکایان مات کړل........................ | ۱۳ |
| ۶ | د اسلامي امارت د جهادي نظم ځانگړتیاوې........ | ۱۶ |
| ۷ | اسلام کې د صحافت (ژورنالیزم) منزلت.......... | ۲۸ |
| ۸ | افغانستان قبرستان امپراتورها.................... | ۳۷ |
| ۹ | آیا امریکایي بمباری‌به د کابل شړیدلې اداره ....... | ۴۱ |
| ۱۰ | نامتو مسلمان فاتحین........................ | ۴۳ |
| ۱۱ | د لیکنې او لیکوالې علمي آروه او معیارونه.......... | ۴۹ |
| ۱۲ | په ننۍ نړۍ کې د رسنیو اهمیت او د مسلمانانو.... | ۶۳ |
| ۱۳ | راهکارهای تقویت امور جهادي فرهنگي | ۶۷ |
| ۱۴ | د مسلمان ژورنالست ځانگړنې.................... | ۷۵ |
| ۱۵ | نوې سروې: امریکایان وایي چې حکومت یې...... | ۸۵ |
| ۱۶ | مورچل د مطبوعاتوپه ډگر کې.................... | ۸۶ |
| ۱۷ | عاقبت خطرناک بی تفاوتی های مسلمانان........ | ۸۹ |
| ۱۸ | په روان جهاد کې د فرهنگیانو ونډه.............. | ۹۳ |
| ۱۹ | د جهاد فقهي مسایل........................ | ۹۵ |
| ۲۰ | بر رسی نقش تز کیه در ساختار شخصیت انسان... | ۹۸ |
| ۲۱ | د ملي وحدت حکومت جان کیري د نیم ساعت.... | ۱۰۵ |
| ۲۲ | ذبیح الله مجاهد څو شیبې له خپل ولس سره....... | ۱۰۸ |
| ۲۳ | د مورچل دار الافتاء........................ | ۱۱۲ |
| ۲۴ | په تېر میلادي کال کې د دښمن د تلفاتو او زیانونو.. | ۱۱۸ |
| ۲۵ | ددعوت، ارشاد او جلب جذب کمیسیون.......... | ۱۲۳ |
| ۲۶ | ښاغلی استاذ شپونکی له مورچل سره په مرکه..... | ۱۲۵ |
| ۲۷ | د مورچل وړمې........................ | ۱۳۰ |
| ۲۸ | خبرونه........................ | ۱۳۴ |


علمي، سیاسي او جهادي میاشتینۍ خپرونه

د امتیاز خاوند

دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنگي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر

شکــور (شفق)

کتــنپلاوی

حســن خپـل | ایـوب صـافی
حســن زوی | حکمت بغلانی
زبیر مـسافر | حافـظ سعـید

تخنیکي چارې

دفرهنگي کمیسیون تخنیکي څانگه



مکاتباتي ادرس

پته: کابل ښار، پنځمه حوزه، دمجلې دفتر

E-mail: baakhtaraf@yahoo.com

بسم الله الرحمن الرحيم



# دمورچل دا کالګنه !!

له نیکه مرغه مورچل دجهادي مطبوعاتو په افق کې ، خپرنیزه ځغاسته پداسې وخت کې کلنۍ او دکالګنې ترمداره وغځوله ،چې همهاله ورسره امریکایي ښکیلاکګرعسکر هم مجاهدینو ته سلامي او د(۲۰۱۴)زکال د دیسامبرپه (۲۸)نیټه یې خپل ښکیلاکي بیرغونه راکوزکړل ،داکومه تصادفي پيښه نه وه ، دا هیواد کې دامریکاد جارح پوځ تر (۱۳)کلن جارحانه حضور په ناکامه پایله کې دخپل نړیوال برم سربیره ځرګنده ماتې او افغان مسلمان او مجاهد قام ته سلامي ده ،دا هغه پدیده ده، چې خلکو یې بیړنۍ تصور هم نه کاوه ،بلکې دا داسلامي امارت دسرښندونکیو مجاهدینو دفدایي ګوزارونو دباردو تاو اوحرارت و ،چې استعمارګریې داډول سرکوزۍ ته اړیستل او ددوئ په وینا ، چې نور به دافغان مسلمان ولس پرضد میداني جګړه نه کوي ، یوازې یو محدود شمیرمشاورین اوسلاکاران به یې دغلامې اداري دعسکرو دروزلو لپاره تریو وخت پورې پاتې وي !

که په تیرو (۱۳) بوګنوونکیو او دردونکیو کلونوکې زمونږولس ګڼې ناخوالې اودربدرۍ وکتلې، نوبل طرف ته دامریکاپه سردمدارۍ اشغالګروعسکروهم ښه ورځ نده لیدلې او دسراومال دروندزیان یې ولید ،د(ټایم مجلې)دوروستي راپور پر بنسټ دامریکادکانګرس دتحقیقاتي خدماتوڅانګې دمعلوماتو له مخې دعراق په جنګ کې دامریکا (۸۱۴.۲ ) ملیارده ډالره او د افغانستان په جنګ کې یې (۲۸۵.۲ ) ملیارده ډالره تاوان لیدلی ،برغلګر چې معمولا دعسکري تلفاتو ارقام له رسنیو نه پټ ساتي، خو جهادي نشراتي ارګانونو بیا وخت په وخت له نړیوالو سره شریک کړي دي ، دمطبوعاتي معلوماتو له مخې تیرو(۱۳)کالوکې دامریکایانو او ناټودعسکرو دسرزیان خورا لوړو، مونږ یې دلته یوازې دتیر(۲۰۱۴)زکال هغه شمیره، چې ډیره تحقیقي او د باور وړ ده، په لاندې ډول ستاسو قضاوت ته ږدو، چې له کتنې وروسته به یې دټولو کلونو اټکلي زیان هم لوستوالو ته جوت شي:

په تیر ۲۰۱۴م کال کې په دښمن ټول ټال (۱۵۵۵۴) بریدونه ترسره شوي ،چې په اوسط ډول هره ورځ تقریبا ۴۱ بریدونه کیږي.دغه کال په اوږدو کې دبهرني دښمن (۸۱۲) تنه وژل شوي (۳۲۴) نور ټپيان

شوي دي، چې په اوسط ډول هره ورځ تقريبا (۳) تنه مړه او هره ورځ تقريبا (۱) تن ټپي شوي دی، تير کال کې د داخلي عسکرو، پوليسو او اربکيانو د وژل شويو دقيقه شميره (۲۲۵۲۲) ده او ټپيان يې (۱۴۸۰۷) دي، چې په اوسط ډول هره ورځ تقريبا (۶۱) تنه وژل شوي او هره ورځ (۴۰) تنه ټپيان دي.......

مورچل مجله چې ګام په ګام له جهادي کاروان سره مزل کوي او دخپلو اکي. دلارې داتلانو فتوحات اوبريدونه، ددښمن دزيان کچه او مالي خسارات يې وخت پروخت دخپلې سينې په آرشيف کې راتلونکې نسلونو ته دامانت په ډول ساتلې او پدې هيله پايي ،چې مورچل مجله به انشاءالله تعالی ګانده کې دبا انصافه تاريخ ليکونکيو خورا يو عمده مصدر ،ماخذ اودجهاد دمطبوعاتي ميراث يو شاهکاروي، خپل دې اصالت ته په کتو ،مو هڅه کړې، چې تر خپله وسه ،پکې حقايق حفظ کړواوهغه جهادي او علمي پانګه پکې درج کړو، چې د روان جهاد واقعي انځور وړاندې کوي. !

دمورچـل مجلـې تيـره کالګنـه کـې مـو دمجلـې دتيـر بهيـر دارزونـې لپـاره دجهـادي ادب اوصـحافت دډګـر دنوموتـو ليکوالانـو آندونـه او نظريـات دمجلـې پـه پـاڼو کـې راونغښـتل، خـودا وار مولـوري بـدل او دامريکـايي يرغـل پـر خـلاف مـو داسـلامي مقاومـت دژورنـاليزم اوجهـادي ادب دسـنګر دسرشـارو قلموالواوشـناندو څيـرو دزړه وينـې او دمسـلط رژيـم پـرخلاف دبغـاوت دعلمبردارانـو ،هر اړخيـزو ليکنـو ،تحقيقـاتي او علمـي مقـالو اودعلمـاووقلمي پنځونوبانـدې دمورچـل داکالګنـه بډايـه او غنـي کـړه ،هڅـه مـو وکـړه، چـې دجهـادي مقاومـت دمورچـل فرهنګيـان او دمجلـې قلمـي همکـاران، دکـالګنې پـه زرينـو او رنګينـو پـاڼو کې لا ښـه وځليـږي اوهـم ددوئ لـه علمـي او فنـي پنځونوڅخـه ولـس او مجاهـدين مسـتفيد شي ،ګونـدې کـه پـدې پرمخيـون هڅـه کـې مو څه ناڅه برياليتوب ترلاسه کړی او پرخپل دې فرهنګي او جهادي رسالت بريالي شوی يو !

په پای کې دمورچل مجلې دهغو قلمي همکارانو ،علماوو ،مجاهدو ليکوالانو اوشاعرانو څخه دزړه له کومې مننه کوو ،چې ددې تير(۲۰۱۴ )خپرنيزکال په بهير کې ، په خپلو قلمي مرستو زمونږ متې غښتلې کړي او پروخت وزمان يې دمجلې اداري ته خپلې ليکنې راليږلې دي !

همداسـې دفرهنګـي کميسـون دفرهنګپـال مشـرتابه اواړوندومسـؤلينوڅخه هـم ممنـون او ورتـه لاس پـه دعـا يـو ، چـې پـدې سـختو سـتونزمنو او پيچلوحـالاتو کـې يـې ،بيـا هـم دمورچلوالـو حوصله لوړه ساتلې اودستونزوپه حل کې يې ترې خپله همکاري نده سپمولې !

پـدې هيلـه چـې راتلـونکی(۲۰۱۵ )زکـال بـه مـودفتحي کـال ،دکفـری يرغلګـرو دبشـپړې مـاتې کال او ديوه اسلامي نظام دحاکميت کال وي !!

وماذلک علی الله بعزيز

# نگاهی بر ابعاد مختلف

# روند جهادی در ۱۳ سال که گذشت !

ذبیح الله مجاهد

**آغاز کلام:**

همانگونه یی که ملت افغان اراده نموده بود همان طور شد، زمانی که امریکایها در سال ۲۰۰۱م اراده تجاوز و یورش بر افغانستان نمودند، ملت غیور افغان بدین باور بود که برندهء اخری این جنگ، آنها اند.

جنگ آغاز گردید، خاک افغانستان پامال شد، دست نشانده ها آورده شدند، مردم کشته شدند، خانه ها ویران گرید، افغانهای زیادی دوباره به هجرت مجبور شدند، مادران بی پسر شدند، عروسها بیوه گردیدند و کودکان یتیم شدند، ولی بالآخره اشغالگران هم شکست خوردند، عساکر شان به هلاکت رسیدند، زخم برداشتند، دوچار مشکلات روانی شدند، رهبران شان پی هم به علت ناکامیها و بی کفایتی ها در جنگ (افغان و امریکا) به استعفا مجبور شدند، سکته کردند، ماشین تبلیغاتی انها هم خسته شد، تکنالوژی جدید شان هم بی حیثیت گرید، مزدوران و حلقه به گوشان شان هم توسط افغانها، خوب زیاد به قتل رسیدند واینک در ۱۳ سال گذشته مصارف جنگی امریکا در افغانستان به یک تریلیون دالر رسید که از جیب ملت امریکایی به نیت پیروزی در جنگ کشیده شده بود.

با همه رویداد های انکار ناپذیر و عملکردها، در جنگ (افغان امریکا) افغان پیروز و سربلند بر امد؛ ولی امریکا به سر افگندگی نیروهایش را از افغانستان به عقب راند.

زیرا نیروه مقتدر و متکبر همیشه، زور و امکانات مادی دارد، مگر خرد ومنطق ندارد، در دایره هوس رانی های خود تصمیمی رااتخاذ می نماید که هست وبود سایر ملت ها رانادیده میگرد.

**عزم آهنین:**

ملت افغان در طول تاریخ، پرچم عزت و سرفرازی خود را بلند نگهداشته است، درست است که تعدادی از گرسنه های پول، جاه وجلال

در تـرازوی اشـغالگران اسـتاد شـده انـد و عـوض دفـاع از ملـت، دیـن و نـاموس خـود، در بـدل بردگی، سرافگندگی و پـر کـردن شکم، زنجیـر غلامی را به گردن آویختـه انـد، ولـی ایـن شـمار از افغانماهـای عـاق شـده، فیصدی بسیار کـم از آن ملت اصیل ومسلمان را تشکیل میدهد کـه در قبل انگلیس باز روس و اکنون امریکا را بـه زانـو زد، و در ایـن راسـتا هـیچ اسـتراتیژی و دسیسـه دشمن پایش را به لرزه در نیاورد.

ملت مجاهد افغان تحت رهبری رهبـران اصیل خود، به دین و موقـف جهادی خود چنـان محکم و استوار باقی مانـد، کـه سرچشـمه الهام برای بشریت گردیده و بـه تـاریخ آینـده، حماسـه های فراموش ناشدنی را بر جا گذاشت.

عزم پولادین ملت غیور و مسلمان افغان، کـه در برابـر امریکـا جمـع ۴۹ کشـور مقتـدر جهـان شکست نخورد، کاری خارق العاده یی بود، وچنـان افتخارات را بر عقب گذاشت که نسلهای آینـده آنـرا سر مشق آموزش های خود قرار خواهد داد.

**موقف مستحکم امارت:**

امـارت اسـلامی افغانسـتان در رأس ملـت بـا همت و غیور خود قرار داشت، در جریان سیزده سال گذشته، ملت خود را چنان رهبـری کـرد کـه در تاریخ نزدیک نظیر آنرا نه می بینیم، درست است که افغانها از قرنها با غیـرت بودنـد، میـدان معرکـه هـای زیـادی را از آن خـود کـرده و افتخـار قهرمانی متعددی را کسب نموده اند، مگـر اراده محکم و پخته‌ء را که امارت کنونی از خـود نشـان داد، اگـر روی انصـاف صـحبت نمـاییم، پـس از صدها سال بدین سو کسی مثال آنرا ارایه کرده نه میتواند.

بـه تهی دسـتی در مقابـل امریکـا ایسـتادند، در ضمن جنگ رویاروی و مقابله بادسیسـه هـای استخباراتی، با وسائل مـدرن نظامی دنیـا دسـت وپنجـه نـرم کردنـد، بـه سر کردگی امریکا علیـه ائیـتلاف جهانی، بـا متانت موقـف خـود را حفـظ نمودنـد، محافظـت از وحـدت و مـنظم بـودن صـفوف جهـادی، و حفـظ فضـای اخـوت میـان مجاهـدین خـود در شـرائط بسـیار دشـوار، چیزهای اند که امارت اسلامی را الگوی جهانی قرار داده و باید هر نهضت مبارز و آزادی خـواه از آن پیروی نمود.

ایـن کسـان بـا چیزهـای زیـادی دنیـا بلـدیت نداشـتند، ولـی عقیـده محکـم و بـاور کامـل بـر پیـروزی، آنهـا را ثانیـه یـی هـم نـه گذاشت تـا در برابـر تمـایلات دشـمن سـر خـم نماینـد، بـا مشکلات زیادی امنیتی و اقتصادی، در جریان سیزده سال گذشته ملت خـود را چنـان رهبـری نمود که آفرینش باد.

**حیث سنگین:**

امارت اسلامی مثـل دیگر رونـد هـای تـاریخ یک جریان سیاسی بود، مگر روی مجبوریتهای

متعدد، جهت نظامی آنها بر سایر جهت ها غالب گردید، در نهضت ها، تنظیم ها و ارگانهای نظامی، عوض سنگینی و تفکر، احساسات وجدیت غالب می باشد، مگر امارت اسلامی با اینکه همه تصامیم خود را از سنگر اتخاذ می نمود، جای شگف است که تا اکنون در برابر هیچ مسئله جهانی و افغانی هم از احساسات گرم و ناسنجیده کار نه گرفته، بلکی با خون سردی با مسائل جهانی و کشوری برخورد نموده است.

امارت اسلامی با گذشت سیزده سال مبارزه جهادی خود یک روز هم تصمیمی را اتخاذ نه نمود که فردای آن پیشیمان گردد ونیازی به تبدیلی آن دیده شود.

در حالت فوق العاده جنگی، حیثیت وزین امارت اسلامی، جهانیان را شگفت زده نموده، آنانی که در راستای سیاست به اهمیت سنگینی میدانند، شاید به این شهکار امارت اسلامی اعتراف داشته باشند.

**تدبیر قوی رهبریت:**

در روند جهادی کنونی به رهبریت امارت اسلامی، نسبت به دیگران دشواری های زیادی مواجه بود، با تعقیب جدی ازطرف دشمن اشغالگر، تعین نمودن انعامات چندین میلیون دالری از طرف ارگانهای استخباراتی دشمن و عدم موجودیت جای سالم برای زیست، تصامیم مدبرانه، فیصله ها، رسیدگی به همه مجاهدین و نگرانی صف بزرگ و عریض جهادی در طول سیزده سال، چیزهای اند که به تدبیر قوی و بینش فوق العاده رهبریت امارت اسلامی دلالت می نماید.

با پروپاگند اختلاف افگنی، دسیسه های شوم و مصارف بی حد دشمن در این راستا، رهبریت باتدبیر امارت اسلامی توانست، که امارت را چنین رهبری نماید که کاملا سیزده سال، در صفوف آن یک رخنه کوچک هم دیده نشود و همه افغانهای زیرچتر آن، با هر قوم و میلتی که ارتباط دارد؛ خود را با هم برادر احساس کنند و بخاطر یک هدف مهم و شرعی هر چیز خود را قربانی نمایند.

بدون شک که این همه چیزها به نصرت و اعانت خداوند متعال صورت گرفته و نمایانگر تدبیر قوی رهبریت است، که نسل های آینده از آن چیزیهای زیادی را خواهد آموختند.

نیروی شکست ناپذیر ایمانی ملت افغان:

چون تذکر صورت گرفت، نیروی ایمانی و عزم متین ملت غیور افغان در جهاد کنونی، چیزی بود که برای جهاد جاری حیثیت ستون را داشت، قوت ایمانی افغانها بود که تکنالوژی بسیار پیشرفته جهانیان را به چالش کشید و آنرا به سرحد ناکامی مطلق رساند، در سال ۲۰۱۴م چشم همه به این بود که دیگر افغانها از جنگ خسته شده اند، دیگر صفوف مجاهدین تخلیه

خواهد شدند، و از این بعد مردم این خاک وبوم عوض عزم جهادی به متاع دنیا روی خواهد آوردند، و همچو تعداد چهره های فریب خورده، به زندگی شخصی مصروف خواهد گشتند، ولی برعکس سال ۲۰۱۴م سال فوران ننگ و غیرت ملت افغان بود، عملیات جهادی خیبر به تمام کشور کسترش یافت، همچو جنوب وشرق کشور شمال کشور من جمله بدخشان، قندز، سرپل، جوزجان، فاریاب وسایر نقاط دور دست کشور ساحات کوبنده برای دشمن ثابت گردید، که راه را از دشمن گم ساخت است.

عملیات پرجوش امسال که اینک به رسیدن سرما و زمستان هم موج می زند، این را به وضاحت به اثبات رسانده که افغانها خستگی از جهاد را نه می شناسند، در راه هدف خود هیچ خس و خاشاک را نه میبینند و در کل بخاطر استحکام نظام اسلامی قربانی دادند و رنج کشیدن را افتخار می پندارند وبه سرفرازی به آن ادامه می دهند.

**عشق با جهاد:**

الحمدلله محبت با جهاد در افغانها به آن حد رسیده است که بر هیچ نیروه مستکبر جهان هم چشم شان پر نه میشود، شکست مطلق امریکایها در سال ۲۰۱۴م، راه گمی و وارخطای دشمن مزدور، و در نهایت صدای زمزمه های جهادی در کشور، حقایقی اند که محبت نهایت زیاد ملت افغان را با جهاد و اسلام هویدا می سازد.

# درووند پلو

مولوي محمد هاشم ذاكر

افغانه بيا دې چا له غولي نه سپوږمی واخيسته
د هندوکش له هسکه سره يې پګړی واخيسته

دقام د ننګ شملې دې سپکې شوې په مفته بيه
له درووند پلو نه دې حيا غربي نرۍ واخيسته

چې اصفهان اوهند وسند به دې سلام ته راتلل
لوړه نامه درنه نن چا په غلامۍ واخيسته

ستا د نيکونو پرقبرو دشپې کلبونه جوړ شول
ستا له ميونده يې تپه د ملالۍ واخيسته

تورو ديوانو دې په سپين حرم ښې لوبې وکړې
کوم جادوګر درنه ناهيده ښاپيرۍ واخيسته

توره قلم، تهذيب فرهنګ دين او غيرت او وطن
ټوله هستي درنه په پور ديموکراسۍ واخيسته

ويني قيمت ذاکره اوښکې يې ازار نه لري
چاچې دلر په بدل توره تروږمۍ واخيسته

# مورچل ... رزم بندي !

جمال الدين اديب

د مسلمانانو پر ضد د نړۍ د تاريخ بدترينه جګړه لا ښه زور کې ده، دښمن په ټولو هغو لارو بوخت دی، چې څنګه خپل يرغل ته ثبات او پايښت ورکړي. که مو مخکې نه پېژانده، نو دا ديارلس کاله مو تجربه کړه، چې موږ داسې دښمن سره مخ يو، چې هيڅ ارزښت او اصالت ته ژمن نه دي. داسې دښمن دی، چې له هرې خوا يې ګوزار برابر شو، صرفه نه کوي.

ښکاره نظامي جګړه يې دومره اغېزمنه او ګواښنده نه ده، لکه فکري او فرهنګي يرغل يې. عسکري فعاليت يې دومره کولی شي، چې د وژنې اقدام وکړي، خو هر ګوزار يې د ويښتيا پيغام او دعوت وي.

فرهنګي او فکري يرغل داسې ساحرانه اغېز لري، چې د ويښتيا چانس هم نه ورکوي. هدف شوي عقلونه ويده او خمار د فناء لور ته بيايي. موږ ته عسکري فعاليتونو دومره تاوان نه دی اړولی، لکه فرهنګي او فکري فعاليتونو. بې دز او دوزه او په ډېره هوسايۍ يې عقلونه يرغمل کړل او وژني يې.

موږ وينو چې د ښاري سيمو اوسېدونکو يا ان د اطرافي سيمو خلکو باندې چا په زور او دزو پردي تقاليد نه دي منلي، بلکې د همدې ګواښمنې فرهنګي جګړې له لارې دا خلک رانه پردي شول. هيچا ورته په سر لاس نه دی ايښی چې په زوره يې يوې خوا ته راکاږي، بلکې سکرين او کاغذ دې ځای ته راکاږل.

دا اوس چې سکرينونه په کوم ډول او اندازه عقلونه کنټرولوي او ټاکل شوي لوري ته يې بيايي، د نړۍ هيڅ زورور داسې کنټرول نه دی راوستی. خبره ټوله همدې ته راګرځي، چې فرهنګي او فکري فعاليت لکه اوبه ډېرو کې لار باسي.

که روان جهادي بهير کې دا فکري او فرهنګي مورچلونه نه وای، خدای خبر چې نور به څه راپېښېدل. که څه هم موږ په هغه مطلوبه اندازه فعالان نه يو، نه مو دا فکري مورچلونه په مطلوبه اندازه ګرم ساتلي، خو بيا هم وياړ دی، چې په تش ميدان نه يو پاتې.

"مورچل" د اسلام او مسلمانانو په ننګه کې تر آخري بريده ځي. هيڅ فکري سپما نه لري، ټول کوښښ يې همدا دی، چې څنګه دغه فرهنګي هجوم ماتې سره مخ کړي. بيا هم موږ اعتراف کوو، چې انساني کوښښ دی او له نيمګړتياو به خالي نه وي، خو دغه "مورچل" له نيمګړتياو سره سره دې ځای ته رسېدلی، چې دښمن يې حسابوي او د هر توري غشي ته يې د يوه ډال پيدا کولو اړتياويني. له ستر درباره ورته د سوبو او مختګونو توفيق غواړو. په احترام

# د فکري او قلمي جهاد

# مـــورچل

موسی فرهاد

د هندوســتان د نیمــه وچــي (برصــغیر)، مسلمان مفکر او وتلي فیلسوف علامه اقبال څه ښه ویلي چي:

> خــدا آن ملــتي را ســـروری داد
> که تقدیرش به دست خود بنـــوشت
>
> بــه آن ملــت ســروري کاری نــدارد
> که دهقــانش برای دیگـــران کشت

مورچـل، د هغـه ملت د تقدیر بـدلولو فکري او قلمي سنګر دی چي غواړي پخپلو نا آشـنا او بـي مثالـه سربـښندنو سره خپـل تـاریخ پخپلو ګوتو نویشته کړي. او لـه هغـه نـامراده، دهقانه یې وژغوري چي د خپل ټاټوبي د سرور او خوښۍ کښت – کرهڼه د پردو لپاره کوي.

دا ډېره موده کیږي چي زموږ غریبه خاوره د پردیو د نـاروا یرغلونـو پـه وړانـدي مورچـل، مورچل ده. هره لویشت یې د آزادۍ د اتلانو پـه سپیځلو وینو خړوبه شوي. دغو اتلانو د مقدس آسماني حکم د تعمیل په موخه د خپل رب د رضا لپـاره، د ایمـاني هوډ او افغـاني غیـرت پـه مټ هیڅکله خپل غلیم ته د بي ننګۍ سر ټیټ کړی نه دی. بـلا ډېـري خـوارۍ، کړاوونـه، هجرتونـه، زخمونه، شهادتونه او آسارتونه یې ګاللي خو د قربانۍ مورچل یې هیڅ مهال خالي پري ایښی نه دی. درې نیمـي لسـیزي کیـږي چـي د ایثـار او قربـانیو یـو نـه بیلیـدونکی تسلسـل را روان دی. چي له امله یې د شیطاني لښکر دوو سترو یکه تـازانو د ذلـت شکسـت وخـوړ، مګـر د دیـن، خـاورې، او نـاموس دسـاتني پـه نـوم ودان شـوی مورچـل لا همغسـي ودان پـاتي شـو. او مورچـل سـاتونکو اتلانو پخپلو ګوتو تـاریخ تـه ولیکـل چي:

> ما مجاهــد حقیم قـدرت خـدا باما است
> هر کجا که رو آریم دست کبریا باما است
>
> مــا بــه یــکـر ملت بـازوی تـوانایيم
> اعتمــاد امروزیم افتــخار فــردا ییم

اقبال-لاهوري

هو ! شته دا خاوره داسي وګړي هم لري چې دې غيرتي خاوري پخپله غيره کې را لوی کړي ؛ خو حيف !!! چې هغوی د خپل ناموس ساتني احساس او وجدان نلري. دوی که څه هم د سر په سترګو د سپيڅلي آسماني کتاب د جهاد آيتونه ليدلی شي ، په غوږونو د خپلو نيکونو او مسلمانو اقوامو تاريخي داستانونه اوريدلای شي ، د انساني فطرت د استقلال او حريت غريزه درک کولای شي. ؛ خو ولي بيا هم ورته د بې ننګۍ ، بې ايمانۍ او نامردۍ لاره ښايسته ښکاري. د شيطان په لارښوونه د يرغلګرو په خدمت او چوپړ کې ولاړ ، پرخپله خاوره ، خپل ناموس او خپلو خلګو بلوسيږي. افسوس ، بيا هم افسوس او بيا هم افسوس. !!!

دا يوازې هغه وګړي نه دي چې د ناپوهي ، جهالت او بدبختۍ په ناسور اخته دي او يرغلګر دښمن ترې ډال جوړ کړی ، ترڅو د مجاهد د توري له ګذار نه پرې خپل ځان وساتي ؛ بلکې يو شمېر نور چې ځانونه اهل قلم او صاحب دانش بولي ، دوی هم خپل ، ننګ ، غيرت ، ايمان او وجدان پلورلی او خپل قلم او دانش يې د متجاوز غليم چوپړ ته وقف کړی. شپه او ورځ لګيا وي ، ترڅو د جهاد ، مبارزې ، خپلواکۍ ، آزادۍ او حريت ايماني او فطري فلسفه ترديد او تقبيح کړي ، پرځای يې لادينيت ، سيکولريزم ، کفري ديموکراسي ، دروغجنه آزادخيالي ، منحط غربي کلچر او پردی فرهنګ ، زموږ په پاکه خاوره کې پلی کړي. ولي دا يې هيره ده چې د دوی باداران له دومره ستر تخنيکي وس او ميډيايي ځواک سره سره ونه توانيدل چې له يرغله تر زواله پوري د آزادۍ له اتلانو نه د ايمان او خپلواکۍ مورچلونه خالي کړي ؛ نو څنګه به دغه عاقبت ناانديشه قلم خوځوونکي ګوډاګيان د کابل د تياترونو ، سينماګانو ، نايټ کلبونو ... له لاري همدارنګه تش په نوم رسنيزو غربي ادارو ( بی بی سي ، آزادۍ ، تاند ، محور ، طلوع او نورو .... ) ته اجرتي ، وطن پلورونکي وکولای شي چې د مورچل غونډي قلمي او فرهنګي مورچل په وړاندي بريالي شي؟. نه ، هيڅکله نه. دمورچل نن کليزه ده ، خو عمر يې څو کاله دی. د يرغلګرو له راتګ سره مورچل آباد شوی ، تراوسه يې د هيواد په ګوټ ګوټ کې د مجاهدينو د هرډول عملياتو هره صحنه قدم په قدم تعقيب کړي او په رينښتيني بڼه يې پخپلو پاڼو کې ثبت کړي. چې د راتلونکي تاريخ يو ستر باب جوړوي. ترڅنګ يې د مکار دښمن او بې ضميره ګوډاګيانو د هغو هڅو چې غواړي زموږ ملي ، اسلامي فرهنګ مسخ کړي ؛ ښه په زغرده ، فکري او قلمي مبارزه کړي او کوي يې.

مورچل اوس د مسلمان ، مجاهد ملت فکري ، قلمي ، او فرهنګي مورچل دی. او تل به د متعهدو ، مجاهدو ليکوالانو په رينښتيني قلم ديرغلګرو او ګوډاګيانو هڅي او ارمانونه له خاورو سره خاوري کوي.

انشاء الله.

# مورچل مجله

## دتېرو خپرنيزو کلنو په هينداره کې !

سيد سعيد

مورچل مجله داسلامي امارت دفرهنگي کميسيون له خوا په ۲۰۰۷ز، کال کي تاسيس شوه ، لومړی درې مياشتنۍ بيا دوه مياشتنۍ او اوس هره مياشت په کتابي شکل دچاپ په گاڼه پسولل کيږي ، مورچل په گران هيواد افغانستان کي دامريکايي ښکېلاک پر ضد دروان جهاد خوراغښتلی مطبوعاتي، فرهنگي اوفکري مورچل دی .

دمورچل مجلې مسؤل مدير :(ښاغلی شکور شفق صاحب ) دی او دتحرير هيئت غړي يې :(حسن خېل، ايوب صافی، حسن زوی، حکمت بغلاني، زبير مسافر او حافظ سعيد) دي .

مورچل مجله ديني ، پوځي ، سياسي، فرهنگي، علمي ، ادبي اوپه ټوله کي دروان جهاد پياوړی انځورگر سنگر دی .

مورچل ديرغلگرو ځواکونو اودهغوی دداخلي مزدورانو پر کاروانونو، اډو، دفترونو،پوستو او پټنځايونو دقهرمانو مجاهدينودچريکي حملو، مځکنيو چاودونو،تهاجمي بريدونواو استشهادي عملياتو نيته ،نوعيت او ارقام لوستونکو ته وخت په وخت وړاندي کوي .

مورچل مجله دمجاهدينو دبريدونو دانعکاس سربيره علمي ، جهادي ، فقهي، سياسي، تاريخي ،اصلاحي، ادبي اوټولنيز مطالب هم خپروي، په مورچل کي دمتفرقوسياسي مطالبو ترڅنگ لاندي مضامين قست وار او مسلسل خپريږي .

۱- دجهاد فقهي مسايل
۲- داسلام غزوات اوسرايا
۳- دموچل دارالافتاء

۴- جنګي جنايتونه

۵- شهيدي قافلې

۶- دمورچل وړمې

۷- ذبيح الله مجاهد ځوشيبې له خپل ولس سره

۸- ددعوت او ارشادمياشتنی راپور

۹- دولايتي جهادي مسولينو سره مرکې

۱۰- دشهادت غوښتني اوفدايې عملياتوپه هکله شرعي دلايل اوداسي نور،

مورچل مجله دجهادي پيښو دخبرونو، راپورونواوشنونوسره ځنګ کي دجهادي شهکارونو تصويري البوم هم خپروي چي دلوستونکو اومينه والودزياتي خوښۍ سبب ګرځي ، لوستونکي چي دغرب دبيان ازادۍ تر شعار لاندي دجهادي پيښوسانسورځپلي دي ، مورچل او نورجهادي نشرات يې جهادي تنده خړوبوي .

لکه ځنګه چي لوستونکي پوهيږي لويديځ په ټولوقضاياوو کي دوه مخې پاليسي تطبيقوي، همدا راز په مطبوعاتي ډګر کي هم که له يوې خوا دبيان ازادۍ چيغي وهي ، خوله بلي خوا بيادبيان ازادي زندۍ کوي ، لويديځ اومتحدين يې خپلوګټو ته دخطراو يا هوس په صورت کي نه هيڅ رازقوانين او ارزښتونه پيژني او نه هم دبيان ازادي زغملی شي ،تجربې اوشواهدو ثابته کړې چي دنړۍ په مختلفوسيمو کي همدا غربيان (امريکايان اوملګري يې ) دي چي دبيان ازادي يې زندۍ کړې اوغوښتونکي يې په مرګ محکوم کړي دي .

يرغلګرو دافغانستان په شمول دنړۍ په مختلفو برخو کي ازاد مطبوعات هم دزر او زور له لاري رام کړي، ډيري زياتي رسنۍ اوژورناليستان يې په ډالرو داسي معتادکړي چي اوس شپه او ورځ دتور په سپين او دسپين په تور اړولوګرمي هڅي کوي ، خود يو شمېر هغو رسنيو چي خپل مسؤليت ته يې لومړيتوب ورکړی پردفترونواوخبريالانو يې بياپرله پسې حملې کړې او په ډول ډول نومونو يې دبدنامولوهڅي کوي .

ښکېلاکګرواو دکابل اجير رژيم يې په مستقيمه توګه هم خورا ډيري چاپې اوبرېښنايي رسنۍ تاسيس کړي چي شپه او ورځ تبليغات ورته کوي ، له مختلفو لاروپه پوره زور سره هڅه کوي چي دمجاهدينو بږغ ترخلګو ونه رسيږي، خو دخدای جل جلاله نصرت او دمجاهدينو همت دی چي خپله برحقه داعيه يې له بيلابيلو لارودنړۍ تر ولسونو پوري رسولې ده .

اسلامي امارت دفرهنګي کميسيون په چوکاټ کي دالیکترونیکي میډیاپه برخه کي دالاماره ، شهامت او اسلام په نوم په پښتو، دري، عربي،اردو اوانګريزي ژبو متعدد ويبسايټونه چلوي او په سمعي اوبصري بخش کي دالاماره ، منبع الجهاد، الهجرة او توره بوره په نوم جهادي ستوډيوګاني لري چي په لسهاوو جهادي حماسي ويډيوګاني يې خپرې کړي دي اوهمدا رازدپرينټ میډیاپه ډګر کي دمورچل ، شهامت ، څرک ، حقيقت، الصموداو شريعت په نوم په دري، پښتو،عربي او اردوژبومياشتنۍ اودوه مياشتنۍ مجلې خپروي .

دډيري خوښۍ ځای دی چي يادو شوو جهادی چاپي اوبرېښنايې خپرونودمجاهدينو پرضد درسنيوپه حاکم سانسور کي هم دجهادي ډګر تول فعاليتونه اوخوځښتونه په تصويري،ږغيز او تحريري شکل ترهيوادوالو اونړيوالو رسولي دي .

مورچل مجله چي له نن څخه تقريبا اته کاله مخکي يې لومړۍ ګڼه چاپ شوه ،لله الحمد ورځ تربلې ښکلې شوې او غني شوې ده، ښکست او ډيزاين يې په زړه پوري شوی اود محتوی له لحاظه ښه پياوړې شوې ده ،مورچل په ټوله کي دغربي ښکېلاک وحشتونه ، جنايتونه،او نه بخښونکي مظالم ترخلګو رسوي، ديتيمانو، کونډيانو، اسيرانو اومظلومو هيوادوالواهونه او فريادونه منعکسوي ، دجهادي مسؤلينوله خولې دجهادي ډګر تودې اوسړې او دلومړي لاس معلومات خپروي او مورچل مجله دحاکم ژړ ژورناليزم په اوج کي دننني جهاد شهکارونه دتاريخ حافظې ته سپاري .

له نورو مجلو څخه دمورچل مجلې يو امتياز دادی چي له پيل څخه تر اوسه پوري چي پنځه اويا(۷۵) ګڼي يې چاپ شوي دزمان اومکان په سختوشرايطو کي هم ناغه نه شوه ، په تېره لسيزه کي دهيواد په مرکز او ولايتونو کي متعددي مجلې تاسيس اوچاپ شوې ، خو تر لنډ جريان وروسته بيرته بندي شوې ، اما مورچل مجله نه يوازي داچي دوخت په تېريدو سره ټکنۍ نه شوه بلکي لاپسې غني ،ښکلې او وغوړيده .

خدای جل جلاله دي دا مورچل نور هم پياوړی او غښتلی کړي . امين!



شاهد غزنیوال



# طالبانو امریکایان مات کړل !

۱۴ کاله وړاندې چې امریکایان صلیبي غرور راخیستي او یو اځې د ټوپک په خوله یې خبره کوله ، پر افغانستان باندې د یرغل په مهال یې دا په خیال کې هم نه ورګرځیده چې دوی دې بیا یو مهال همداسې مړه غوږونه له افغانستانه ووځي.

هغه مهال پر امریکایانو سربیره د بل چا هم دا زړه ته نه لویده چې دغه پرمختللی لښکر دې د تش لاسو افغانانو په لاس مات او افغانستان دې بیا د نړۍ پرمخ د یوه خپلواکه او مستقل هیواد په توګه پاتې شي.

خو الهي تقدیر بیا د دغو مادي اټکلونو خلاف یو بل ډول فیصله او پریکړه کړې وه او هغه دا چې د همدغو تش لاسو ، ځوریدلو او ځګرو ځپلو افغانانو په لاس به نه یو اځې دا چې امریکایان له شکست سره مخ کیږي ،بلکې د هغوی ترڅنګ به د نړۍ یو بل مقتدر پوځي ځواک د ناټو تړون هم ماتې خوري او د نورو ماتې خوړلو متجاوزینو په څیر به له افغانستانه په ځوړنده اورمیږونو پرشا کیږي.

سبحان الله ! افغانان که د ژوند په نورو مجالاتو کې د نړۍ د تمدن له قافلې ډیر وروسته پاتې دي ، خو دغه یو امتیاز بیا الله تعالی خاص پر دې میړني ولس لورولی چې د نړۍ مستکبرین پر همدغه کمزوري ولس راپُر ځوي او د غرور او استکبار نشه یې له ککرۍ ورځخه باسي.

د بیلګې په ډول د چنګیز حشر او لښکر هغه وخت تالا ترغه شول چې د نیږدې ټولې نړۍ د فتح کولو له خُماره سره په افغانستان یرغل وکړ ، انګریز هغه وخت افغانانو په کوکارو کړ چې کله یې د امپراتوري حدود دومره پراخ شول چې لمر به نه ورکې ډوبیده ، پخواني شوریان یې په داسې وخت کې په ترپکو کړل چې کله یې د ټولې منځنۍ اسیا او ختیځې اوروپا په لاندې کولو سره د



هند د تودو اوبو لامبو په خیال کې ورګرځیده او اوسني مغرور امریکایان یې په داسې مهال کې مات کړل چې د یوه قطبي تکبر له امله یې ټولې نړۍ ته داکرښه راکاږله چې یابه زمونږ خبره منۍ او یامو د برید انتظار کوئ !

امریکایان چې له محسوساتو او مادیاتو ورهاخوا په مغیباتو او معنویاتو باور نه لري ملامت نه ول چې دغسې احمقانه بابولالې یې غړولې ؛ ځکه هغوی له مادي لحاظه د خپل علمي ، تخنیکي ،پوځي او اقتصادي پرمختګ په مجال کې د نړۍ په کچه بل څوک د ځان سیال نه لیدو ، نو ځکه یې په دغه مغرورانه خطاب سره خپلو هغو سیالانو ته چې یو وخت د دوه قطبي توب پرمهال د دوی مقابل ول دا خبره ورفهموله چې نور باید له مونږ سره د سیالۍ پرځای مونږ ته د تسلیمي تندی پرځمکه کیږدئ.

امریکایان له دې ناخبره ول چې داسې یو مقتدر ذات هم شتون لري چې د نړۍ د تر ټولو کمزوري مخلوق (غوماشي) په وسیله یې د نړۍ تر ټولو ستر طاغوت (نمرود) له منځه یووړ.

هماغه مقتدر ذات د خپل غیبي قدرت په ښکارکولو سره هماغه مغرور، پرمختللی او یو قطبي امریکایان له افغانانو سره په داسې حال کې په جګړه واچول چې د جګړه ځپلو افغانانو ټول توان د تیرو ۱۸ کلونو جګړو په اورکې اوبه شوی او تمام شوی و ، مګر د هغه باوجود یې امریکایانو او د هغوی صلیبي اشروالو ته داسې ګذار ورکړ چې د دوی د یرغل د وخت ټول حماقت یې له دماغه ورځخه وایستی.

دلته پرځای خبره ده چې هغه د خواجه عبدالله انصار (رح) وینا را وړل شي چې وایي:

((الهی ! هر که را خواهی که براندازی، با ماش دراندازی)).

امریکایانو چې کله پرافغانستان یرغل کاوه نو د هغه د تبریر لپاره یې د افغانستان

کې تر ټولو اوږده ، خسته ګنه ، او لــه اقتصــادي پلــوه ملاماتوونکې جګړه ده چې دوی ورسره مخ شوي.



دلته دامریکایانو لپاره تر ټولو شرموونکې خبره داده چې په دې شکست کې له دوی سره نړیوال صلیبي ایتلاف ( ناټو ترون ) هم ګډ دی ، خو افغانانو د الله په نصرت په یواځې ځان له دغو ټولو مغرورو یرغلګرو څخه د مقابلې میدان یوړ ، او د خپل مقدس جهاد په برکت یې هغوی دیته اړیستل چې په مړو غوږونو له افغانستانه پښې سپکې کړي.

د یوویشتمې پیړۍ دغه تاریخ جوړوونکې جګړه افغان غیرتي ولس د طالبانو په جهادي قیادت کې وګټله او هم د دوی په نوم به د افغان غیور ملت په زرین تاریخ کې د تل لپاره ثبت وي.

هرگز نمیرد آنکه دلش زنده شد بعشق

ثبت است برجریده عالم دوام ما

آزادي، ترقي ، سوکالي او په دغه وروسته پاتې هیواد کې د امریکایي ډیموکراسي پیاده کول پلمه کول، خو د ۲۰۱۴کال د ډسمبر په ۳۱ نیټه چې کله یې په افغانستان کې د اشغال هسک کړی پوځي بیرغ بیرته رانغاړه دا یې له خیاله وتلې وه چې مونږ په ۲۰۰۱ لومړي کال کې افغانستان ته ولې راغلي او اوس ولې بیرته ترې وځو؟

په افغانستان کې د امریکایانو او ناټو فاحش شکست په دغه هیواد کې د ۴۰۰۰خارجي یرغلګرو وژل کیدل او د سلګونو زره نورو ژوبل کیدل او لیوني کیدل دي.

او پر دوغو ځاني تلفاتو سربیره یې یو تریلیون (زرملیارده ډالره) مالي لګښت او په سلګونوزره پوځي وسائل یې هم له منځه تللي.

امریکایان په خپله پردې خبره اعتراف کوي چې د افغانستان جګړه د دوي په تاریخ

# د اسلامي امارت د جهادي نظم

# ځانګړتیاوې!

مولوی عبدالهادی (مجاهد)

داسې ښکاري لکه الله تعالی چې د کفري نړۍ د معاصرو لویو قدرتونو د زوال د پیل نقطه افغانستان ټاکلی وي. د انګریزانو د قدرت زوال هم له همدې ځایه پیل شو، د شوروي اتحاد زوال هم له همدې ځایه پیل شو، او دا دی ټولې نړۍ ولیدل چې د امریکا په مشرۍ د غربي دولتونو د نظامي قدرت زوال هم له همدې ځایه پیلېږي او تقریبا د غربي ایتلاف ټولو دولتونو لکه امریکا، کاناډا، برتانیې، فرانسې، ایټالیا، جرمنې، هالنډ، هسپانیا، استرالیا او نورو هیوادونو یو په بل پسې خپلې قواوې د اسلامي امارت د مجاهدینو په مقابله کې د جګړې له ډګره و ویستلې او پرته له دې چې په جرأت سره د خپلې ماتې اعلان وکړي بالفعل یې د تېښتې لار ونیوله.

دا چې اسلامي امارت په تېرو دیارلسو کلونو کې څنګه د یوه ستر مجهز او نړیوال پوځي ایتلاف په خلاف خپله جګړه پر مخ یووړه؟ او څنګه یې د دغه ډول یوه لوی پوځي ځواک په مقابل چې د خارجي او داخلي ګډونوالو شمېر یې تقریباً شپږ لکو مسلحو پوځیانو ته رسیدو په خپل صف او خپل ولس کې د مقابلې وړتیا پیدا کړه؟ او څنګه یې له بېلا بېلو داخلي او نړیوالو توطیو سره مقابله وکړه او خپل صف یې له کمزورۍ کېدلو او په هغه کې د دانشعابونو له رامنځته کېدلو وساته او لا نور یې هم د قوت او انسجام پر لوري سوق کړ؟ د دې هر څه تر شا د الله تعالی تر فضل او نصرت وروسته یو غښتلی، سنجول شوی جهادي نظم وجود لري چې دغه جهادي مقاومت یې له فکري، پوځي، اقتصادي، اداري، سیاسي، او لوژستیکي اړخونو د دښمن په مقابل کې فعال او د هرې مرحلې له غوښتنو سره سم عیار وساته، او پداسې یوه نامتوازنه جګړه کې یې له مادي لحاظه یو کمزوری او مغلوب قوت بېرته د یوه نړیوال لوی

او غالب قوت په مقابله کې د بري او غلبې پر پولو ودراوه.

په مجموع کې د اسلامي امارت د جهادي صف او په هغه کې د جهادي نظم ځینې ځانګړتیاوې په لاندې ډول دي:

**۱- پر شریعت تمسک او یوازې اسلام د تلقي مصدر ګڼل:**

د طالبانو د ټول حرکت او د اسلامي امارت د نظام د قوت مصدر اسلامي شریعت ته د هغه انتساب او د هغه له احکامو سره د ژوند په ټولو ابعادو کې التزام دی. ځکه چې طالبان نه د کوم نړیوال پوځي ځواک له ملاتړه برخمن دي، نه د کوم قوي اقتصاد خاوندان دي، نه یې حرکت او امارت د کوم اوږده سازماني فعالیت په نتیجه کې تشکیل شوی او واک ته رسیدلی، نه کوم نشنلستیک نظر او بنسټ لري چې دیوه خاص قوم مادي قوت دې د دوئ قوت وبلل شي، نه په کوم نړیوال پوځي ایتلاف کې عضویت لري چې د هغه پوځي ترون قوت دې د دوئ قوت وګڼل شي، او نه په پوځي لحاظ کوم داسې منظم په پوځي اصولو روزل شوي او په پر مختللو وسلوسمبال قوت دی چې د خپلې وسلې او خپل پوځي صنعت په زور دې د خپلې بقا او برلاسۍ عوامل برابر کړي. بلکه د طالبانو د حرکت نشأت او د دوئ د نظام د قیام مراحل ټولو په سترګو ولیدل چې یو خودجوشه دیني او افغاني حرکت وو چې مشران یې د پخواني جهاد د فکر او نظر خاوندان علماء او قومندانان ول، او افراد یې د مدارسو کشران طالبان ول چې په یوه قوي دیني شعور او احساس د خپلو مشرانو له حرکت سره یوځای شول او د شلو کلونو په تېریدلو او د مبارزې د بېلابېلو پړاوونو پر وهلو په فکري، سیاسي، اجتماعي او پوځي لحاظ د پخوالي دې حد ته ورسیدل چې په ښه بصیرت، صبر، مېړانه او قوت یې د امریکا په مشرۍ د یوه لوی نړیوال پوځي ترون مقابله وکړه او هغه یې له افغانستانه وتلو ته اړ کړ.

د طالبانو دیني او شرعي حیثیت مسلمان ولس د دوئ ترشا ودراوه، دوئ ته یې یو فداکار، رضاکار اومخلص پوځ په لاس ورکړ، او همدغه دیني حیثیت په دوئ کې په معنوي او رواني لحاظ د مقابلې وړتیا پیدا کړه.

په شریعت باندې په هر حالت کې تمسک او د هغه پر اساس د نظام جوړول او له نا اسلامي نظریاتو سره پیوند نه اخیستل او د شریعت په مقابل کې وضعي قوانین ردول هغه ځانګړتیاوې دي چې د طالبانو حرکت او اسلامي امارت یې د نړۍ د مسلمانانو په سترګو کې د یوه داسې اصیل اسلامي بهیر په حیث وځلول چې د معاصرې نړۍ د کفري نظامونو له تأثیراتو خلاص او د اسلامي وینبتابه یوه داسې نمونه یې ورڅخه جوړه کړه چې د نورو ولسونو لپاره د اسلام لپاره د پوځي او سیاسي فعالیت یوه ښه نمونه او سرمشق وګرځېدل.

د شلمې پیړۍ له پیل راهیسې په اسلامي نړۍ کې ډېر نهضتونه او حرکتونه په اسلامي نومونو جوړ شول خو دغو حرکتونو د وخت له

تېرېدلو سره خپل خالص اسلامي مصداقيت ونه ساتلی شو، بلکه په يوه او بل ډول يې له نورو مفکورو لکه کمونيزم، ديموکراسۍ، نشنليزم، او نورو نظرياتو سره په فکري، سياسي، اقتصادي او يا نظامي ډګرونو کې پيوند واخيست، او پدې کار سره يې د مسلمانانو اعتماد هم له لاسه ورکړ، او خپل ځان يې هم هماغو پرديو نظرياتو ته ورباېلود چې په پای کې يا ديموکرات او غرب پلوي او يا هم نور نشلست او منحرف تنظيمونه او احزاب ورڅخه جوړ شول.

د طالبانو د قوت او عافيت راز په همدې کې دی چې پر خالص اسلام متمسک پاتې شي، په هيڅ شکل له بل چا سره پيوند وانخلي، او دسياسي او مادي امتيازاتو په بدل کې له خپلو هغو اسلامي اصولو اوتکلارو تېر نه شي د کومو لپاره يې تر اوسه په لسګونو زره شهيدان ورکړي دي. او که چېرې دوئ هم له نورو افکارو او سياستونوسره پيوند واخلي نو برخليک به يې په يقيني ډول د هغو اسلام ته منسوبو احزابو په څېر وي چې نن د ديموکراسۍ په چوکاټ کې له سيکولرو احزابو سره په ايتلافونو کې ورګډ دي، او د داسې حکومتونو برخه دي چې د جهاد او مجاهدينو په خلاف يې په ټوله اسلامي نړۍ کې علني جګړه اعلان کړې ده.

**۲- په جهادي حل باندې باور لرل او له دښمن سره د جوړ جاړي نه کول:**

د طالبانو د حرکت او د اسلامي امارت د نظام يوه بله ځانګړتيا دا ده چې د واقعي تبديلۍ لپاره دعلو او دعوت تر څنګ په جهادي حل باندې باور لري، او پدې لار کې يې نه تر اوسه له ځانه سستي ښکاره کړې، او نه يې له دښمن سره جوړجاړی کړی دی.

طالبانو ته په اسلامي نړۍ کې د معاصرو اسلامي تنظيمونو او حرکتونو له ناکامو تجربو دا ورښکاره شوې چې تر څو واک او نظام د صالحو خلکو لاس ته نه وي ورلوېدلی او حکومتونه پر اسلام نه وي درېدلي، نو مثبته تبديلي نه راځي. همدغه تګلاره د رسول الله صلی الله عليه وسلم له سيرت او د واقعي بدلونونو د سترو رهبرانو له کړو هم ثابتېږي. په تقريباً تېرې يوې پېړۍ کې ډېرو حرکتونو او تنظيمونو له مسلح جهاده لېرې د فکر، دعوت، سياست، تعليم، او اقتصادي اصلاح له لارې د بدلونونو هڅې وکړې، احزاب يې تشکيل کړل، په ميليونونو اتباع يې په کار واچول، په ډيموکراسۍ ورګډ شول، له سيکولرو احزابو او حاکمو غرب پلوو او شرق پلوو ګوندونو سره يې ايتلافونه وکړل، او په ميلياردونو ډالر او په لسګونو کلونوعمرونه يې مصرف کړل، خو هېڅکله يې نه په ولسونو کې اصلاح راوسته، او نه يې نظامونه تبديل کړای شول، بلکه په خپله يې هم د سيکرلريزم او ديموکراسۍ نم کش کړ، او دا ځکه چې دوئ له زورواکو، مستبدو، پردي پالو او تحميلي نظامونو په عذرونو، زاريو او نصيحتونو تبديلي او اصلاح غوښتله پداسې حال کې د زورواکۍ، استبداد او پردي پالنې په منطق کې سوله ييزو او نرمو وسائلو ته ځای نشته، ځکه چې هغوئ يوازې د زور په ژبه پوهېږي او بس.

طالبان کـه څـه هـم چې پـه فکـري لحاظ داستاذ سـيد قطب د فکـر وارثـان نـه دي خـو پـه عملي ډګـر کې يې د هغـه دا نظريـه پـه ډېـر ښـه ډول عملـي کـړه چـې موجـوده مفسـد او جـاهلي نظامونـه پـه پيونـد کارۍ او د هغـو پـه چوکـاټ پـه اصـلاحي دعـوت او کـار نـه اصـلاح کېـږي، بلکـه دغـه مفسـد او جـاهلي نظامونـه بايـد لـه بېخـه ونـړول شـي، خـاوري او خځلـي يـې ليـرې وغورځـول شـي، او پـر ځـای يـې لـه سـره پـر اسـلامي بنسـټونو او د اسـلامي عقيـدې او تصـور پـه رڼـا کې نـوي نظامونـه جـوړ شـي. ځکـه چـې دغـه نظامونـه پـه هـېڅ حالـت کـې اصـلاح منونکي او شريعت ته تسليميدونکي نه دي.

طالبانو هـم د بـدلون لپـاره د دعـوت او جهـاد فطـري او نبـوي لاره ونيولـه چـې نـه يـې لـه داخلي مفسدو او سيکولرو جهتونو سره جوړ جاړی وکړ، او نه يې د امريکا په مشرۍ نړيوال سرتمبه صليبي ايتلاف ته سر ټيټ کړ. نه يې له خپلو اصولو تنازل وکـړ، او نـه يـې لـه دښـمن سـره د خپلـو اصـولو او تګلارو پـه قيمـت سـوله وکـړه. هماغـه وو چـې الله تعالی يې پـه هڅـو او جهاد کې برکت واچاوه، او داسـې دښـمن تـه يـې مـاتې ورکـړه چـې ټولـه نـړۍ ورڅخه پـه وېره کې وه. د طالبانو دغـه ډول سياسي او عسکري فهم دا ثابته کړه چې د مدرسې، منبر او محراب د بچيانو فهم د هغو پردي پالو او سيکولرو اشخاصو او جهتونو تر فهم ډېر پوخ دی چې ځانونو ته (روښانفکران) وايي خو په حقيقت کې د غرب د کفري نظرياتو په تيارو کې ورک او د خپل امت له ارمانونو څخه پردي شوي دي.

د دعـوت او جهـاد پـر نبـوي مـنهج ټينـګ پـاتې کېـدل، او دامـت ځوانـان د آزادۍ او اسـلامپالنې لارې تـه سـوق کـول د طالبـانو او اسلامي امـارت يـوه بلـه ځانګړتياده چې نور ډېر جهـادي حرکتونـه بـه يـې د خپلـې مبـارزې لپـاره سرمشـق وګرځـوي. ځکـه چـې د همـدغې لارې افاديـت د اسـلامي نـړۍ پـه نـورو هېوادونـو کـې هـم پـه عملـي ډول ثابـت شـو او د ډېـرو طـاغوتي نظامونو د قدرت ستنې يې ور ولړزولې.

**۳ - پراخه غېږ او د شخصيت محورۍ او خاندان محورۍ نشتوالی:**

د طالبانو د حرکت او داسلامي امارت د نظم يوه بله ځانګړتيا دا ده چې دا جريان پـه يوه خاص توکم، قوم او سيمې پورې خاص نه دی، او نـه هـم پدې جريان کې څو داسې خاصې کورنۍ شته چې هماغه دې د قدرت محور وي او دې ټول ثانوي او فرعي حيثيت ولري.

د طالبانو پـه حرکـت او داسلامي امارت پـه نظـام کـې پښـتانه، تاجـک، بلـوڅ، ازبـک، نورستانيان، پشه يان او د نورو قومونو خلک وجود لـري چـې دې ځانګړتيا دغـه جريـان پـه طبيعي او اصلي ډول د افغانستان ټولو سيمو ته غځولی دی.

پـه تېـرو څـو لسـيزو کـې د اسـلامي نـړۍ پـه هېوادونـو کـې ډېـر مـنظم اسلامي حرکتونـه او احـزاب موجـود ول، خـو د وخـت پـه تېرېـدلو پـر اصـولو او اسـلامي فکـر د ټينـګ پـاتې کېـدلو پـر ځـای د شخصـيت محـورۍ او خانـدان محـورۍ پـر لـوري لاړل، چـې پـدې کـار سـره يـې پـه پرګنـو

کې خپل پراخ نفوذ او ډېر ملاتړي له لاسه ورکړل، او تنظیمونه یوازې په یو څو شخصیتونو او څو خاصو کورنیو کې منحصر پاتې شول چې واضح مثالونه یې زموږ د پخواني جهاد د وخت تنظیمونه او په ګاونډیو هېوادونو کې ځینې اسلامي احزاب دي.

خو طالبانو پدې مجال کې له پوره هوښیارتیا کار واخیست، او کله یې هم ځان په یوه خاص قوم او یا یو څو خاصو کورنیو کې منحصر نه کړ، بلکه هر هغه چا ته یې په ځپل صف کې د کار او جهاد کولو لار خلاصه پرېښوده چې د کار وړتیا او د جهاد عزم او توانایي یې درلوده. نو ځکه خو هېڅکله او په هیڅ ځای کې پدې خطرناکې او وږدې جګړې کې چې د امریکا او اروپا په خلاف یې دا څوارلس کاله وکړه د بشري قوي له کمښت سره مخامخ نشول، بلکه که هر څومره ډېر مجاهدین او مشران یې اسیران او یا شهیدان شول تر هغو نور ډېر د جګړې ډګرته راغلل، او کله هم له بدخشانه نیولې تر هلمنده، او له هراته نیولې تر ننګرهاره پدې صف کې تشه احساس نشوه. او دا ځکه چې پدې صف کې هر چاته خپل ځان (اصلي) ښکاري، او دا تصور له هېچا سره نشته چې یوه طائفه خلک دي ورکې (اصل) او نور دې ورکې (فرع) وي.

**۴- د انشعابونو او انشقاقونو نه شتون :**

په هغو حرکتونو او تنظیمونو کې چې د افکارو او نظریاتو پر ځای شخصیتونو باندې ډېر تمرکز کېږي، او د قیادت خلک پداسې حال کې په منصبونو پورې نښتي وي چې اتباع یې د قربانۍ ډګرونو ته ورټېل وهل کېږي کینې او کدورتونه ډېر رامنځته کېږي چې عواقب یې د انشعابونو او اختلافاتو په شکل کې راڅرګندېږي. خو په هغو حرکتونو کې چې تمرکز ورکې پر عقائدو او نظریاتو وي، او قیادتونه په خپله د قربانیو ډګرونو ته له افرادو سره یو ځای ورځي دغه ډول تجربې ډېرې نه پېښېږي.

دطالبانو صف هم همداسې دی چې قیادتونه ورکې په خپله د قربانۍ ډګرته وردرومي. او همدغه وجه چې د دوئ تقریبا اتیا فیصده قیادتونه داسې دي چې یا یې خپل د بدن غړي له لاسه ورکړي، یا یې د کورنۍ افراد شهیدان شوي، او یا یې هم په کلونو کلونو د زندان تیارې لیدلې دي. نو کله چې اتباع خپل مشران پدغه ډول حالت کې ګوري د هغوئ اعتماد لا نور هم ورباندې زیاتېږي.

د طالب په صف کې مشر کېدل یو غنیمت او منصب نه بلکه د مرګ او د زندان خولې ته د ځان د وربرابرولو په معنی ده.نو ځکه خو دلته مشرۍ ته یوازې هغه خلک ځان تېنګوي چې له ژوند، خوندونو او راحت سره یې خدای پاماني کړې وي. او کله چې

وضعیت دغه ډول وي نو بیابه ولې دمنصبونو او مشرۍ لپاره انشعاب رامنځته کیږي؟

په تېرو شلو کلونو کې د طالبانو دښمنانو ډېرې هلې ځلې وکړې چې طالبان په څو ډلو وویشي، خو یوه هڅه یې هم بریالۍ نشوه. د صف د دې وحدت نتیجه دا راووته چې په مادي او پوځي لحاظ یوه کمزوري جهت چې یوازې یو څو زره مجاهدین یې درلودل داسې یوه نړیوال پوځي تړون ته ماتې ورکړه چې د داخلي او خارجي ګډونوالو شمېر یې تقریبا شپږ لکو مسلحو پوځیانو ته رسېده.

د طالب صف به هغه وخت ټوټه کیږي چې پدې صف کې قومي، مذهبي او د مادیاتو پر سر کشمکشونه پیدا شي، او تر جهادي روحیې زیاتره پر سیاسي روحیې ارتکاز وکړي.

### ۵- د سیاسي او پوځي فعالیتونو اسلامي ماهیت ته التزام:

د طالبانو په سیاسي او پوځي فعالیتونو کې اسلامي ماهیت ته التزام د دوئ یوه بله ځانګړتیا ده او هغه پدې معنی چې لکه څنګه چې دوئ په عدلي، حقوقي، اخلاقي او ټولنیزو تعاملاتو کې اسلامي معیارونه خپل کړي همدارنګه یې په سیاست او پوځي فعالیتونو کې هم تر اوسه اسلامي اصولو او معیارونو ته التزام ښودلی دی، او د امریکا او غربي ټلوالې په خلاف یې خپله روانه جګړه هم له پیله تر پایه دیوې دیني او مشروعې جګړې په حیث روانه کړې ده. طالبانو خپله جګړه نه د سیاست لپاره وبلله، نه یې هغې ته قومي رنګ ورکړ، که یې له چا سره سیاسي تعامل وکړ هم نو د دین په اساس یې وکړ، او که د جګړې پر مشروعیت باندې خپل ولس او نورو خلکو د قناعت ورکولو لپاره دلائل وړاندې کړي نو بیا یې هم دین د مشروعیت بنیاد ګرځولی دی.

دطالبانو په جهادي بهیر کې دجګړې دمشروعیت دلائل، دجګړې لپاره روحیه او انګېزه، سیاسي او فکري ادبیات او له دښمن سره تعامل او تقریبا هر څه پر دیني اساساتو ولاړ دي. نو ځکه دوئ وکولای شول چې دي ته د همدغه قوي او عملي نسبت په برکت هم په خپل ولس کې په لسګونو زره مجاهد او شهادت غوښتونکي ځوانان له ځانه سره ملګري کړي، او هم د ټول اسلامي امت په سطحه د مسلمانانو عواطف، دعاګانې او مادي او معنوي مرستې له ځانه سره ولري.

د روسانو او کمونیزم په مقابل کې چې زموږ جهادي صف ترڅو پر دیني بنسټونو ولاړ وو نو مسلمانانو یې جګړه اسلامي جهاد باله او هر ډول مرستې یې ورسره کولې، خو کله چې د جهادي صف مشرانو په خپلو غلطو سیاستونو، فیصلو او اقداماتو د صف دیني حیثیت ورختم کړ او د خپلو شخصي اهدافو او غوښتنو د تحقق په خاطر یې له اسلام

دښمنو کړیو او دولتونو سره روابط ټینګ کړل نو نه یوازې دا چې الله تعالی هغوئ د اسلامي نظام د اقامه کولو له عزته محروم کړل بلکه پخپله هماغه مشران او د هغوئ ډلې هم د مافیایي، ملېشه یي، سیکولرو او غرب پلوو ډلو ټپلو په حیث د اسلام د دښنانو په صف کې ودرېدل، او په ډېرې بې شرمۍ یې د امریکایي یرغل په خلاف د راپورته شویو مجاهدینو په خلاف د صلیبي ایتلاف ملګرتیا وکړه، او د هغوئ د اهدافو لپاره د اوزارو په حیث استعمال شول.

**۶-دجګړې په دوران کې دټول هېواد لپاره د ملکي او نظامي تشکیلاتو لرل:**

د طالبانو دټول بهیر د جهادي نظم یوه بله تر ټولو مهمه ځانګړتیا داده چې جګړه ییز حالات ورڅخه په انارشۍ او بې نظمۍ بدل نشول، او د تل لپاره یې جګړه منظه او په خپلو سیمو کې جګړه ییز وضعیت او حالات په خپل کنترول کې وساتل.

طالبانو اجازه ورنکړه چې له جګړه ییزو حالاتو څخه په استفاده دې په ولس کې غیر مسؤوله ډلې ټپلې او خپلسري ټوپکوال سر راپورته کړي ،بلکه د جګړې له پر مخ بیولو سره سره یې د خپلو سیمو ټول ملکي او نظامي وضعیت د منظمو تشکیلاتو په چوکاټ کې منضبط کړ. هغوئ د ټولو ولایاتو لپاره والیان ،ولسوالان ،عدلي او قضایي مسؤولین، نظامي قومندانان، د ډلګیو مشران او د چارو د څارنې لپاره د قیادت له طرفه د څارنې سیار کمیسیونونه وټاکل چې پدې کار سره یې له یوې خوا جګړه ییز حالت منظم کړ، او له بلې خوا یې په ولس کې د بې نظمۍ ، بې عدالتیو او د غیر مسؤولو ډلو او ټوپکوالو د رامنځته کېدو مخنیوی وکړ.

له همدې امله خو په آزادو سیمو کې امنیت او د عدالت تأمین دهغو سیمو په نسبت ډېر قوي دی چې د امریکایي پلوي حکومت تدر تسلط لاندې دي، او دهمدې امتیاز له امله دولس عام خلک خپلې عدلي او قضایي قضیي د دولت پر ځای د طالبانو محاکمو ته راجع کوي.

د طالبانو اداري او محاکم که څه هم چې د بېلابېلو مشکلاتو له امله مثالي اداري ندي خو په هر حالت کې یې وضعیت دامریکایي پلوي حکومت تر ادارو او محاکمو غوره دی.

د طالبانو بهیر د بل هر اسلامي بهیر په څېر یو د انسانانو بهیر دی چې د ځانګړتیاوو او کمالونو تر څنګ نیمګړتیاوې هم لري چې په نورو ځانګړو لیکنو کې به یې یادې کړو،خو دا یو منل شوی حقیقت دی چې طالبانو په خارق العاده ډول د نړیوال زبرځواک مقابله په پوره تدبیر او مېړانې وکړه، او او د نړۍ ډېرو ولسونو ته یې د طاغوتانو په خلاف د پاڅون او مقابلې الهام ور وبانبه.

# چې ناټو په کې د آسیا له لوړو ورغړېده !

(أبو عابد )

۲۰۱۴م کال دافغانستان په تاریخ او دروانې جګړې په بهیر کې یو مهم او ټاکونکی کال و، ددې کال تر ټولو ستره لاسته راوړنو د یرغلګرو ځواکونو عملي تېښته ،دیرغلګرو بیرغونو رانسکوریدل او د امریکايي یرغلګرو لخوا په پوځي شکست څرګند اعتراف و.

ددې ترڅنګ دې کال د افغان اولس او مجاهدینو لپاره نورې هم ګڼې تاریخي لاسته راوړنې او سوبې درلودې.دغه کال په کابل کې د بهرنیانو په یوه پټنځای چې رسنیو د لبناني رستورانت نوم ورکړ له یوه تندریز برید څخه پیل شو،چې د ګڼو بهرنیو استخباراتي منسوبینو په وژل کیدو یې اشغالګرو ته سخت ټکان ورکړ،د همدې او ورته نورو بریدونو پایله وه چې څه موده وروسته د مارچ په میاشت کې کاناډايي یرغلګرو خپل بیرغ رسما راکوز او له افغانستانه یې پښې سپکې کړې.

کاناډایان وتښتیدل خو نور اشغالګر ملګري او ګوډاګیان یې د مجاهدینو تر ځپونکو بریدونو لاندې و، په کابل ، جلال اباد ، کندهار، غزني، هلمند او دهیواد په نورو سیمو کې ښاري بریدونه پرلپسې روان و،د اپریل میاشت وه چې په جنوب ختیځ کې بدخشان په جوش راغی،مجاهدینو نه یوازې په بیا بیا په وردوج کې دښمن ته عبرتناک درسونه ورکړل بلکې یمګان ولسوالي یې هم په بشپړه توګه ترې ونیوله، د بدخشان سوبو ددښمن وارخطايي یو په دوه کړه.

د اپریل په میاشت کې چې لومړني انتخابات ترسره کیدل، مجاهدینو په درست هیواد کې سرتاسري عملیات ورباندې ترسره کړل،چې په یوه ورځ کې په دښمن د جهادي بریدونو شمیر تر

۱۰۰۰ واوښت، د مې په میاشت کې مجاهدینو خیبر عملیات په امریکایي سفارت له برید څخه پیل کړل،د عملیاتو په لومړۍ ورځ د بګرام هوایي ډګر او دهیواد په مختلفو سیمو کې ددښمن نور مهم مراکز د مجاهدینو تر سختو بریدونو لاندې راغلل.

د مې میاشتې په وروستیو کې مجاهدینو ددښمن هغه ستر عملیات له سختې ماتې سره مخامخ کړل چې دغزني په ګیلان ولسوالۍ کې یې پیل کړي و،همدغه مهال خیبري عملیات له کمې او کیف اړخه د عروج په حال کې و او دهیواد په لراوبر کې د یرغلګرو پښې په سستېدو وې .

د ۲۰۱۴ م کال د جون میاشتې په پیل کې داسلامي امارت د سیاسي دفتر د هلو ځلو په برکت د اسلامي امارت پنځه تنه لوړرتبه مشران د ګوانتانامو له زندان څخه راخلاص او له خپلو ملګرو سره وصل شول، دغه بریا چې دبندیانو دتبادلې په توسط تر لاسه شوه ځکه بیساري وه چې امریکایانو تردې وړاندې کومه داسې تبادله نه وه ترسره کړې .

د جون په میاشت کې مجاهدینو د روزګان په دهراود کې هم ستر عملیات پیل کړل چې دپام وړ لاسته راوړنې یې درلودې، دهمدې میاشتې په ۱۶ مه چې دوهم ځلي انتخابات ترسره کیدل ، مجاهدینو یوځل بیا ددښمن مراکز تر سختو هماهنګو بریدونو لاندې ونیول ، چې دښمن ته یې درانه تلفات درلودل.د جون میاشتې په وروستیو کې مجاهدینو د تیر په څیر یوځل بیا د ننګرهار په تورخم کې د یرغلګرو په اکمالاتي مرکز برید وکړ او سلګونه موټر یې داور په لمبو کې لولپه کړل .

د تیر کال د جولای په میاشت کې مجاهدینو د هلمند په سنګین، نوزاد، کجکي، ګرشک او خانشین کې هم د پاموړ عملیات ترسره کړل، په دې عملیاتو کې ترټولو خبرساز او بریالي عملیات د سنګین د څاروان کلا و چې په نتیجه کې یې دغه پراخه سیمه په بشپړه توګه ددښمن له شتون څخه پاکه شوه ، په همدې مهال د یرغلګرو د ماتې په بهیر کې یوه بله پیښه د افغانستان لپاره د امریکایي حکومت د ځانګړي استازي ډوبینز استعفاء وه چې په سیاسي ډګر کې یې د اشغالګرو له بشپړې ناتوانۍ او ګنګستیا څخه پرده پورته کړه .

د جولای په میاشت کې د کابل ښار په څنډه د ارغندۍ په سیمه کې مجاهدینو په تاکتیکي برید سره ددښمن سلګونه په تیلو بار ټانکر موټر د اور په لمبو کې لولپه او اشغالګرو ته یې درونډ مالي زیان وروواړاوو،په همدې میاشت کې د پکتیا په زرمت کې د حامدکرزي په ځانګړي ګارد چې پکتیکا ته په لاره و مجاهدینو تندریز برید وکړ

چې د ساعتونو جګړې په پایله کې ورته درانه زیانونه واوښتل.

په ورپسې میاشت اګست کې تاریخي کابل یوځل بیا د تاریخي کارنامې شاهد و، ددې ښار په یوه پوځي مرکز کې د رفیق الله په نامه یوه نفوذي مجاهد د امریکایي پوځ لوړرتبه کسان په نښه کړل چې په نتیجه کې یې د تورنجنرال په شمول ګڼ بهرني لوړپوړي پوځیان قتل او څو تنه نور ټپیان شول، دا برید یو بیساری برید و چې په نړی والو مطبوعاتو کې یې هنګامه راپورته کړه.

د سبتمبر میاشت په پلازمینه کابل کې یوځل بیا د فدایي بریدونو د شدت میاشت وه، چې په ګڼو حکومتي اهدافو ترسره شول، دهمدې میاشتې په پیل کې مجاهدینو په غزني ښار کې هم په حکومتي مراکزو ځیونکي فدایي بریدونه ترسره کړل چې د پخوا په پرتله بیساري و په دې سربیره د غزني د اجرستان په ولسوالۍ کې ګوډاګي عسکر سخت وځپل شول او پراخې سیمې ترې تصفیه کړای شوې،د غزني او هلمند د مهمو سیمو غونډې د تیر کال په اوږدو کې په فاریاب ولایت کې هم مجاهدینو پراخ فتوحات درلودل، دغه راز په ننګرهار،پکتیا، هرات، کندز،سرپل، غور،فراه، زابل،بدخشان،کونړ، نورستان کندهار او ګڼو ولایاتو کې مجاهدینو پراخې سیمې ددښمن له شتون څخه پاکې کړې او حتی د مکملو ولسوالیو په کچه سیمې یې فتحه کړې.

د اکتوبر میاشت د یرغلګرو د تیښتې اوپه شکست د اعتراف یوه تاریخي میاشت و ددې میاشتې په پیل کې د المان د بهرنیو چارو وزیر فرانک والتر شتاین اعترا ف وکړ چې په افغانستان برید د ناټو او الماني حکومت تر ټولو ستره اشتباه وه، د همدې میاشتې په وروستیو کې د افغانستان د اشغالګرو له جملې له امریکا وروسته دوهم مهم هیواد برتانیې هم رسما شکست ومانه او د شوراب په پوځي اډه کې یې خپل بیرغ راکوز او شکست خوړلیو لښکرو ته یې دتیښتې قومنده ورکړه.

د برتانویانو تیښتې په امریکایانو هم وارخطایي ګډه کړه نوځکه یې د تیښتې تصمیم ونیو او دخپلو پخو اډو په ړنګولو یې پیل وکړ.

برتانویان وتښتیدل او امریکایانو هم د بار بسترو په ټړلو پیل وکړ، دوی په دې امید له افغانستانه وتل چې تر شا پاته کارونه به یې روزل شوي ګوډاګیان ترسره کړي، خو د مجاهدینو د ځپونکو بریدونو په وړاندې د اشغالګرو غونډې ددوی ګوډاګیان هم په شکست محکوم و، د نومبر میاشتې په لومړیو کې په لوګر کې په اربکیانو خورا اغیزمن برید ترسره شو چې له امله یې ددې

سيمې داربکيانو د يو مهم قومندان په شمول ګڼ اربکيان ووژل شول.

نو مبر مياشت د يرغلګرو د د ډيپلوماتيکي تينبتې پيلامه هم وه و دهمدې مياشتې په ۲۱ مه بلجيم هيواد اعلان وکړ ، چې دپوځيانو غونډې خپل سياسي استازې هم له افغانستانه وباسي او خپل سفارت ته قلف ور اچوي، دهمدې مياشتې په وروستيو کې د اسلامي امارت څو تنو فدايانو په هلمند کې د يرغلګرو په لوی مرکز شوراب بريالی عمليات ترسره کړل چې درې ورځې يې جريان درلود ، په دې بريد کې ددښمن لسګونه عسکر مړه او ژوبل او پراخ مالي زيانونه هم ورته ورسيدل .

د ۲۰۱۴ م کال په وروستيو کې هغه مهال چې په کابل کې له انتخاباتي رسواييو وروسته د امريکا په مستقيمه مداخله يو نوی ګوډاګی حکومت رامنځته او له يرغلګرو سره يې د امنيتي تړون موافقه لاسليک کړه، مجاهدينو ګوډاګيانو او دهغوی بادارانو ته د درس ورکولو په ترڅ کې يوځل بيا په کابل کې په دښمن بريدونه پيل کړل، په کابل کې ددې وروستيو بريدونو څپه خورا بې ساري او کم سابقه وه، تردې چې په کابل کې ددښمن په ترټولو حساسو مراکزو فدايي بريدونه،چاودنې او ددښمن په افرادو چريکي حملې د ورځې خبره وګرځيده، دې عملياتو نه يوازې داخلي ګو ډاګيان له وارخطايي سره مخامخ کړل، بلکې بهرني اشغالګر عسکر او دهغوی ملکي کارمندان خو يې عملي تيښتې ته مجبور کړل .

د کال په وروستيو کې مجاهدينو د کونړ ولايت په دانګام کې په دشمن ځپونکي عمليات ترسره او دغه مهمه سيمه يې له اربکيانو تصفيه کړه،د کال په اوږدو کې همدا پرلپسې عمليات و چې بالاخره يې د دسمبر په وروستۍ اونۍ کې نه يوازې د ناټو په مشرۍ اشغالګر دخپل بيرغ کوزولو او د تيښتې رسمي اعلان ته مجبور کړل، بلکې بارک اوباما هم د امريکايي پوځ ديارلس کلنه جګړه پای ته رسيدلې اعلان کړه .



هو کې په ۲۰۱۴ م کال کې دامپراطوریو په هدیره افغانستان کې دیوې بلې امپراطورۍ غرور هم دفن شو، دلته هغه لښکر مات شو چې د تلپاتې اشغال په نیت راغلی و او غوښتل یې له دې هیواده خپل اسیایي سنګر جوړ کړي

په ۲۰۱۴ م کال کې د پوځي ډګر دتاندو حماسو او لاسته راوړنو غونډې په سیاسي ، تعلیمي،روغتیایي او نورو برخو کې هم داسلامي امارت فعالیتونه په خورا بریالیتوب او ښه ډول روان و، د دعوت او ارشاد په برخه کې دهځو او هاند په برکت په زرګونو ددښمن ټیټ پوړي او لوړپوړي افراد ددښمن له صف څخه راجلا او داسلامي امارت له صف سره یوځای شول، باید ووایو چې په دې برخه کې داسلامي امارت د عفوې پالیسي لا هم ثابته ده او ددښمن په صف کې ولاړ ټول عسکر،اربکیان،مامورین او منسوبین ترې استفاده کولای شي .

په نشراتي برخه کې داسلامي امارت د فرهنګي کمیسیون تر اشراف لاندې په ټولو نشراتي برخو کې رسنیز فعالیتونه روان و، الاماره سایت په پنځو ژبو، پښتو ، دري، عربي،انګلیسي-او اردو لوستونکو ته نه یوازې ورځنۍ جهادي خبرونه رسول، بلکې مرکې، تحلیلونه، رسمي بیانات، چاپي مطبوعات،ترانې ، جهادي ویډیوګانې او د آنلاین راډیو له لارې خپرونې یې هم ورته وړاندې کولې .

د چاپي مطبوعاتو په برخه کې الصمود، څرک، مورچل، شهامت،حقیقت او شریعت میاشتنۍ مجلې په پوره مواظبت سره چاپیدلې او لوستونکو ته یي په ټول پوره ادبي،سیاسي،علمي او تحقیقاتي مطالب وړاندې کول،په چاپي برخه کې په مجلو سربیره دامارت د مشرتابه پیغامونه،کتابونه او نور نشراتي مواد هم چاپ او تر مینه والو رسول کیدل .

د ویډیوګانو په برخه کې د الاماره ، منبع الجهاد، الهجرت او توره بوره جهادي سټوډیو ګانو لخوا وخت په وخت بصري اصدارات کتونکو ته وړاندې کیدل چې په پراخه کچه په اجتماعي شبکو او رسنیو کې هم ترې استفاده کیدله .

په هر حال ۲۰۱۴ م کال له هره اړخه یو له بریاوو، لاسته راوړنو، حماسو او ویاړونو ډک کال و، چې د جهاد په تاریخ کې به یې یادونه په زرین عنوان ولیکل شي، ددې کال په ترځ کې تر هرکله زیات بهرني اشغالګر زموږ له پاکې خاورې وتښتیدل چې همدا امتیاز یې اشغال ځپلیو هیوادوالو ته نه هیریدونکی زیری بلل کیدای شي .

# اسلام کې دصحافت (ژورنالیزم) منزلت!

(مفتي شاهد حقاني)

دیوه جامع ،بشپړ اوافاقي دین په حیث اسلام، دصحافت او ژورنالیزم غوندې ټولوهغو فنونو او علوموته دلوړمنزلت اوارزښت په سترګه ګوري، چې له برکته یې انساني ټولنه پرمختګ کوي او دنویو اختراعاتواو ابتکاراتولامل ګرځي ،داسلام مبارک دین چې څنګه له روحانیت ،تعبدي اموراتو او دټولنې، بلکې دانساني جامعي له همګي اصلاح سره سروکار لري، همداسې له سیاست ،ادب ،معاشرې اوټولوهغو معنوي علوماوفنونوته درشد او پراختیا هڅونه کوي ،چې پایله کې یې ټولنه دهوسایي او سوکالۍخواته درومي اودتمدن پرمختګ لاره طی کوي .

ژورنالیزم چې ترديې دمه دادب پوهانو په آند دادب یو ژانر یا صنف بلل کیده، او او س یې یو بیل هنر یا فن بولي ،فنپاري یې په خبریالۍ ، تبصره لیکنه ،مرکې او په ټولیز ډول دتازه پېښو او ټولنیزو تراژیدیو یا کمیدي ډولو صحنو قلمدادولو او راټولو پرمحور څرخي ،اودصحافت مزایاوې دخبر،فیچراوکالم لیکنې منځپانګواوټولې شوي خبري معلوماتي پانګې سره نیغ په نیغه اړیکه نیسي ،داسلام مبارک دین ته همداسې صحافتي مزایاوې او رښتیوني ژورنالستیک آرونه ارزښت لري او دهنري تمرکز لپاره یې خورا قیمتي بولي .

لکه چې دیوه کره خبرخورا مهمه ځانګړنه داوي، چې پرحقایقو ولاړاو دپیښې عیني انځورګري وکړي ،داسلام مبارک دین هم د خبر د صداقت او رښتیاوالي په نورمونو باندې ډېر ترکیز کوي ، دهغو ځانګړتیاوو نه چې خبریال باید ورته دکار په بهیر کې پاملرنه وکړي، رښتیاني ویل دي،خبریال باید پېښه په هماغه

ډول چې پېښه شوې وي خپره کړي، نه هغه ډول چې دده زړه يې غواړي،سره لـه دې چې ډيرى رسنيو ,په ځانګړې توګه لويديزو هغورسنيو دبې پريوالي له ټکي په مسلکي ډول ناوړه ګټـه پورتـه کړې،دخبر دترلاسه کولو او خپرولو پرمهال بايـد دسياسي،شخصيـ او ټـولنيزو ګټـو او دغــه راز دکينې،مينې او احساساتو له کارولو ډډه وشي،نا پلـوى تـه نـه ځيرنـه ددې لامـل کيـږي ،چـې اوريـدونکې او ليـدونکې خپـل بـاور پـر پـام وړ رسنۍ له لاسه ورکړي او په دې توګه رسنـۍ لـه مـاتې سره مـخ شي،کلاسـيکو دوروکـې چـې (اخبـار)دابلاغي وسـايلو خـورا مهـم مرکـز و،او خلکوبـه لا هاغـه مهـال چـې نـور بريښـنايي او طباعتي ماشينونه منځ ته نه وو راغلي، پـه خپلـه رائجه بڼـه لـه اخبـاره استفاده کولـه او دوخـت پاچايانو به دولسونو دخبرولو لپاره ورته مختلفـې وسـيلې پـه کـارولې ،مشـهور ژورناليسـت (سـيد عبدالسـلام زينـي )پخپـل يـوه کتـاب (اسـلام اوژورناليزم) کې ليکي چې : اخبـار دخبر جمع ده ،اودا نـوم دهغـو خبرنـامو لپـاره غـوره شوي و،چــې داســلام نــه مخکــې بــه دايــران پاچايانودهيواد هرې برخې ته دخبرونـو درسولو په خاطرترتيبول ،چې ددې مقصـد دتـرسره کولـو لپاره به يې ټاکلوخبريالانوته اخبار ليکونکي ويل ،نومـوړى ژورنالسـت ليکــي :چــې داضرورت دحضـرت پيغمـبر صــلى الله عليــه وســلم او راوروسته دخلفـاى راشـدينورض پـه دوران کـې هم محسوس شو،پيغمبرصـلى الله عليـه وسـلم او صحابه وو رض ،به خپل ځانونه له حالاتو نه خـبر ساتل،تردې چې دويم خليفه حضرت عمررض بـه دشپې تياره مهـال پلـى دمـديني پـه کوڅـو کـې ګرځيده اوخپل ځان به يې دمسلمانانو له حـالاتو څخه خبراوه ، دې وضاحت کـې (حضرـت مفتـي محمد شفيع رح)پـه (اداب الاخبـار)يوه مضـمون کـې ليکـي چې :پيغمبرصـلى الله عليـه وسـلم او صحابه وو رض به څکه ځان دمسلمانانوله حـالاتو نـه خـبراوه، چـې ترخبريـدو وروسـته دمظلـوم مرستې ته ځان ورسوي ،دنـاروغ پوښـتنه وکـړي ،کمزوريوتــه لاس ورکــړي او محتــاجوخلکوسره دمادي او روحاني مرستې په خاطر خپلې ذرايـع په کار واچوي ،اوکه چاسره يـې دمـادي مرسـتې وس نه درلود ،نو اقـلا ددعـا پـه کولـو سره ځـان ورسره په غم کې شريک کړي ............

کله چې په تيره پيړۍ کـې ماشـينونه جـوړ شول ،کمپيوټر،انټرنيټ ،فکس ،ټوټيټراو فيسوک بريښنايي وسايلو غوندې چـاپي مطبوعـات هـم معياري او دټايپينګ ماشين پرځاى دعصريت له خوږو برخمند شول، نو اوس چې پـه ذرايعـو کـې انقلاب راغلى، نو صحافتي کوايفو کـې هـم سـتر بدلون تر سترګو شو،خو ددې پرځاى چې بـدلون داسې شکل خپل کړي ،چې اسلامي اصـطلاحات او اصول نورهم پياوړې کړي ، خبره سرچپه شوه ،دصحافت فن دلويـديځ تـر سـيورې راغـى او آن دصـحافت او صـحافي عـربي کلـمات هـم پـه

انگلیسيـ (ژورنـاليزم او ژورنالسـيت )بانـدې واوختـل ،دصـحافت اسـلامي روح دلويـديځوالو سيکولرستانوپه پرله پسي فريبونوپـه خپـل حـال پاتې نشو،نن خبريـالي ديـوه مسـتکبرهيواددګټو اوشـومو اهـدافو قربـاني ده، خبريـال دبي خرتـه پيسـو پـه پيرلـو سره دهغـوئ لپـاره درواغجنـه خبريالي کـوي اودواقعيتونـو خـلاف صـحنه پـه مزخـرف شـکل عکـاسي کـوي ،ترڅـو دکـومې استخباراتي ادارې پريمانه ډالـر ترلاسـه کړي او دصحافت خپلواک ضمير په پڅه چاړه ذبح کړي !

که څه هم داډول ژورنالیستیک انحرافـات دصحافت له اصـولو سره اړخ نـه لګـوي، بلکـې دا دافرادوجـرم وي ،خودمسـلمانانو دنـه پـاملرنې اونه توجه لامل داشوی، چې لويځوال دفن لوری پرخپـل طـرف وڅرخـوي او دخپلوګټولپـاره يـې استعمال کړي ،مونږچې دلته داسلام مبارک دين کې دصحافت ارزونـه کوو،موخـه بـه مـو يـوازې اسـلامي صـحافت وي،اودغـرب هغـه بـه مومنظورنظر نه وي!

دصحافت مقصد: دغربي صحافت دڅانګې کارپوهانو، دژورناليزم يـا صـحافت پـه بـاب يـې ځينـو داسـې لـيکلي دي : دژورنـاليزم مقصـد دورځنيـو او تـازه خبرونوڅخـه دخلکـو خـبرول ،دننۍ پيښې شرح اودراتلونکې روښانه کـول دي ،داددې لپاره چې خلکوته دهڅو لاره خلاصـه شي ،ډاکتر مسکين علـی حجـازی ليکـي :دصـحافت اوصـحافي (ژورنالسـيت )بنسټيزمقصـدخلکوته دمعلومـاتو پيـداکول ،هغـوئ تـه روزنـه ورکـول ،هغوئ ته لارښوونه اوهغوئ ته تفريح پيدا کول .

ډاکتر عبدالسلام خورشيد،په فن صـحافت کتـاب کـې ليکـي :صـحافت دخلکـو دکـړو وړو تــرجمان اوعکــاس هــم دی او هــم دخلکــو دلارښوونې دنده پر مخ بيايي ،دخلکو خدمت يې لومړنۍ فريضه ده ،پدې خاطر صـحافت دټـولنې ديوې مهمې ادارې حيثيت لري ..............

خو(نـذرالحفيظ نـدوي) پـه خپـل اردو ژبي کتاب (غربی ميډيااوراس کی اثرات)کـې داسـې ليکي :قرآن کريم چې درسـنيو ، ذرايـع ابـلاغ يـا ميـډيا دمفهـوم دادا کولـو لپـاره دکـوم لفظ انتخاب کـړی دی،هغـه د(دعـوت )لفـظ دی ،دا داسې طاقتور او مضبوط قـرآني تعبيـر دی، چـې تر نورو بليغ دی او ددې کـوم بـديل نشـته ،دې تعبير سره قرآنکريم دتبليغاتي يا ابلاغي وسايلو او ذرايعو له لارې نه داسلام دتعريـف او تعـارف کار اخلي ،اسلامي ميډيا يا صحافت دمسـلمانانو دپيغـام رسـولو ډيـره مهمـه اړتيـا ده او قـرآن او سـنت کـې ددې مؤيـدات هـم شـته ،اسلام تـه ددعوت او داسلامي احکامو دنشرواشاعت لپاره ،نن سبا همـدا فـن صـحافت يـا ميـډيا اغيزمنـه وسـيله ده . د دعـوت طريقـه پـه قرآنکـريم کـې داسې بيان شوی :

ادْعُ إِلِى سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ (النحل ١٢٥).

(( بلنه کوه (ای محمده ص! خلکو ته ) لاری د رب (ج)خپل ته په حکمت سره اوموعظه (پند) نیک سره په ښه ډول او مباحثه کوه لـه دوئ سره په هغې (طریقې ) چه هغه ډیره ښه وي )).

د(حکمت )د معنـی پـه اړه علماءکرامو ډیرڅه لیکلي دي, خو پـه لنډ ډول حکمت پـه عامه اصطلاح کې پـه خپل ځای کې د هرشئ ایښودلو ته وایې ،مګر دلتـه د حکمت نـه مراد, کوم چې د حق د لاری داعیان پـر هغـه متصف وي ،غالباً حکمت په وینا کې چه علم او موعظه او یا حکمت د نورو سره په برخورد کې دنیکۍ طرف ته د تشویق لپاره او بدۍ نـه منع کول دي .

ابن زید (حکمت) داسې تعریفوي : هـر ه هغـه وینـا چې دچـا د نیکـۍ د دعـوت سـبب شي اویا څوک د بدۍ څخه منع کړي حکمت دی .

په قرآنکریم کې حکمت د آسماني کتـابونو ،نبوت ،هدایت ،علم ،عـدالت او حلم پـه معنـی راغلی دی .

دخیر طرف ته د دعوت فضیلت اودفساد پروړاندې د بې پروایې وعیدونه :

وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَأُوْلَـئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ١٠٤ الاعمران .په تاسې کې باید څـه خلک هرومرو داسې وي, چې دنیکـۍ لـوري تـه بلنه وکړي, په ښوکارونو امـر وکـړي او لـه بـدو کارو خلـک منـع کـړي, کـوم خلـک چې داکـار وکـړي, هـم هغـوئ بـه بریـالي شي . إذا عملـت الخطيئة في الأرض كان من شهدها فكرهها كـان كمن غاب عنها، ومـن غـاب عنهـا فرضيها كـان كمن شهدها".(ابوداود ٤٣٤٥ ).حضرت عرس بن عمیره (رض)د رسول الله (ص)نـه روایـت کـوي, چې هغوی ص وفرمائیل :چې کله پـه یـوه ځمکـه کې ګنـاه وکـړای شي, نـوچې کـوم خلـک هلتـه موجـود وي او پـه ګنـاه خفـه شي, دوئ د هغـه خلکو په شان دي ،چې هلته موجود نه وي ( یعنې د دوئ څخـه د دغـه ګنـاه پـه اړه پوښـتنه نـه کیږي ) اوچې کوم خلک په دغـه ځمکـه کـې نـه وي او پـدې ګنـاه راضـی وي, نوهغـوئ د هغـې خلکـو پـه شـان دي ،کـوم چـه دغـه ځـای کـې اوسي ( د دوی په ګناه کې به شریک وي ).

عن ابن جرير، عن جرير قال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقـول: "مـا مـن رجـلٍ يكون في قومٍ يعمل فيهم بالمعاصي يقـدرون على أن يغيروا عليه فلا يغيروا إلا أصابهم الله بعذابٍ مـن قبل أن يموتوا(ابوداود ٤٣٣٩ ).

حضرت جابر وايي چې ما له رسول (ص) نه واوريدل چې فرمائيل يې : چې په يوه قوم يا ټولنه کې داسې څوک وي ,چې دشريعت خلاف کارکوي (گناه کوي ) اوددغې ټولنې خلک د توان او قدرت سربيره دهغه اصلاح نه کوي ,داکسان به الله ج له مرگ نه مخکې په عذاب گرفتار کړي .

مطلب داچې دفساد پروړاندې بې پروايې اختيارول دالله په نزد داسې گناه ده چې دآخرت دسختې سزا سربيره به په دنيا کې هم سزا ورکوي .

عن أبي هريرة؛ أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال "من دعا إلى هدى، كان له من الأجر مثل أجور من تبعه، لا ينقص ذلك من أجورهم شيئا. ومن دعا إلى ضلالة، كان عليه من الإثم مثل آثام من تبعه، لا ينقص ذلك من آثامهم شيئا".(مسلم ٢٦٧٤ ).

کوم بنده چې دنيکۍ طرف ته خلکو ته دعوت ورکړ, نو ده ته به دهغو ټولو خلکو هومره اجر اوثواب وي ،څوک چې دده د دعوت سره يې نيک عمل شروع کړی وي .

او ددې نيک عمل کونکو له عمله به هيڅ نه کميږي .

او چاچې خلک د يوې گمراهۍ طرف ته دعوت کړل, نو ددغې گناه به هومره وي, چې کوم گناه کونکی دده د گمراه کونکې عمل په وجه بې لاری شوي وي او ددغه خلکو په گناه کې به هم کوم کمی نه راځي (رواه مسلم ).

عَنْ أَبِي رَافِعٍ ، قَالَ : قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لأَنْ يَهْدِيَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ عَلَى يَدَيْكَ رَجُلا خَيْرٌ لَكَ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ وَغَرَبَتْ. (الطبراني ٩٢٥ ). که الله ستا په لاس يو بنده ته هدايت وکړي ،ستاسو دپاره د ټولو کايناتو نه چې لمر پرې راخيژي او پريوزی غوره دی ( طبرانی ) .

عن جابر قال قال رسول الله صلي الله عليه وسلم اوحى الله عزوجل الى جبرئيل عليه السلام ان اقلِب مدينة كذا و كذا بِاهلِها فقال يا رب ان فيهم عبدك فلانا لم يعصك طرفة عين قال تعالي اقلِبها عليه و عليهم فان وجهه لم يتمعر في ساعة قطُّ ( رواه البيهقي في شعب الايمان ).دحضرت جابر (رض) نه روايت دی ،چې رسول الله (ص) وفرمائيل : چې الله تعالی(ج)جبرائيل عليه السلام ته حکم وکړ, چې فلانی کلی سره له خپلې ټولې آبادۍ په بل مخ کړه ، جبرائيل عرض وکړ ،چې پدې کلې کې خو ستا فلانی بنده هم دی – چې د سترگې د رپ په اندازه يې هم ستا نافرماني نده کړی, دالله (ج) دطرف نه حکم وشو, چې دغه آبادي سره ددغه بنده په ټولو باندې واړوه, ځکه چې د يوساعت د پاره هم

ددغه بنده مخ زما له وجې متغير شوی ندی (البيهقی فی شعب لاايمان).

دصحافت او ژورناليزم فن داسلام ددعوت او اشاعت پياوړې او داسې ذريعه ده، چې ددنيا هركونج وكنار ته داسلام دعوت په ډيره اسانۍ سره رسولای شي او دشرق او غرب ستړې انسان ته، هغه چې دمنبر او محراب څخه يا ليرې يا دظالمو واکمنوله امله محروم او داسلام داعيان نشي ورسيدلای ،نو داميډيا او صحافت يې ورته دسترګو په رپ کې ورسولای شي !

همداسې دصحافت فن ، اخبار ،مجله ،راډيو ،انټرنيټ ،فيسبوک او دټويټر او نورو وسايلو له لارې دوخت حکومتونو ته دمسلمانانوداموراتو اواسلامي احکامو په باب وخت په وخت مشورې ورکولای کيدلای شي ،اودچارو واکمنانو بايدې چې کله کومه حادثه نازل شي ،يا ورته کوم مشکل پيدا شي ، او ورته تګلاره نه وي روښانه، نواسلامي ميډيا داسلام ددې حکم په ورانتقال کې پوره مرسته ورسره کوي ،او اهل خبره او اهل نظر خلک خپلې مشورې ورسره شريکوي ؛دشوری دا اصل قرآن مجيد کې داسې راغلی : وَالَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمْ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَأَمْرُهُمْ شُورَى بَيْنَهُمْ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنْفِقُونَ(٣٨)سورت شوری .

همداسې په سورت آل عمران کې فرمايي چې :( فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللهِ لِنتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنْتَ فَظّاً غَلِيظَ القلب لاَنْفَضُّواْ مِنْ حَوْلِكَ فاعف عَنْهُمْ واستغفر لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِي الأمر } [ آل عمران : ١٥٩ ].دلته پورتنيو آيتونو کې چې دمشورې په اصل ټينګار شوی او امام شافعي رح هم ددې مذکور آيت په تفسير کې فرمايي :چې الله تعالی چې حسن رح فرمايي چې که څه هم نبي عليه الصلاة والسلام له مشورې څخه غني و،ليکن غوښتل يې چې دمشورې اصل واکمنو اوچارواکيو ته ديوه سنت په دود پريږدي ،امام شافعی رح فرمايي چې کله په حاکم وقت کومه پيښه را نازل شي ،يا ورته کوم مشکل پيدا شي، نو بايد چې دعلم او امانت اهل خلک راوغواړې اودمشکل په باب ورسره مشوره وکړي، لکه چې فرمايي : (قال الشافعي قال الله عز و جل وشاورهم في الأمر وأمرهم شورى بينهم قال الشافعي قال الحسن إن كان النبي عن مشاورتهم لغنيا ولكنه أراد أن يستن بذلك الحكام بعده

قال الشافعي وإذا نزل بالحاكم أمر يحتمل وجوها أو مشكل انبغى له أن يشاور من جمع العلم والأمانة وبسط الكلام فيه(احكام القران للشافعی ج٢ص١٢٠).

چاپي او بريښنايي رسنۍ همداسې ظالمو حاکمانو ته دحق ويلو سره دافضل جهاد دنده هم ترسره کوي ،هاغه وخت چې حکام او واکمن ناروااو مظالم پيل کړي، نو همدا مطبوعات او غږيزيا تصويري رسنۍ يې پرخلاف دبغاوت

ناري وهي اودوخت واكمنو په وړاندې دحق وينا جرأت كوي، چې همدې وينا ته رسول الله صلى الله عليه وسلم افضل جهاد ويلى دى، لكه چې فرمايي : عن أبي أمامة Y أن رجلا قال عند الجمرة : يا رسول الله أي الجهاد أفضل ؟ قال : أفضل الجهاد كلمة حق عند سلطان جائر. (المعجم الكبير للطبراني ).

په احكام القرآن ج۷ص۳۰۲)كې ليكي چې : والجهاد بالنفس على ضروب منها

الخروج بنفسه ومباشرة القتال ومنها بيان ما افترض الله من الجهاد

وذكر الثواب الجزيل لمن قام به والعقاب لمن قعد عنه ومنها التحريض

والأمر ومنها الإخبار بعورات العدو وما يعلمه من مكايد الحرب وسداد

الرأي وإرشاد المسلمين إلى الأولى والأصلح في أمر الحروب......خلص مفهوم :جهاد بالنفس په څو ډوله دى :يودادى چې پخپله مباشرة قتال كې برخه واخلي ،بل دادى چې دجهاد دفضايلو په باب او هم دتاركينو دجهاد په هكله تقارير،موعظې او بيان وكړي ،بل قسم يې دادى چې خلك ورته وهڅوي ،تشويق ،ترغيب او تيز يې كړي،داهم يكې دي، چې ددښمن پټ رازونه مجاهدينو ته ورسوي ،ددوئ جنگي پلان او نقشه باندې مجاهدين خبركړي ،په غښتلي رأيه مجاهدينو ته لازمه مشوره وركول،دمسلمانانو ښې جنگي او جهادي لارې ته رهنمايي كول هم دجهاد برخه ده .......

كه وگورو ننۍ معاصره دنيا كې د لساني بيان اوژورنالستيک جهاد خواته دبيان او دعوت له لارې بلل ډيراسان شوي ،ترټولو اسانه ذريعه يې بريښنايي ذرايع دي ،چې هره خبره په څو ثانيوكې دنړۍ تر كونجونو پورې رسوي او همدا چاپي او بريښنايي ډله ايز يا جمعي وسايل دي ،چې دمجاهدينو دفتحې او بري هره تازه او توده پيښه دثانيوو په ضرب كې تر شرق او غربه رسوي او هم ددې لارې نه جهاد ته دخلكو بلل ،او ديوې الهي فريضې په توگه يې په خلكو منل ،ژورنالستيكې رسنۍ په ښه او اسانه طريقه ترسره كولاى شي .

همداسې داسلام يو بل مهم اصل (امربالمعروف والنهى عن المنكر)چې څومره نن



سبا دصحافت له لارې ممکن او له اسانتیاوو سره مل دی ،دومره به دبلې لارې نه وي ،علماء او مسلمان لیکوالان دمطبوعاتو له لارې خپلې دیني او اصلاحي لیکنې خپروي او ټولنه له منکراتو څخه پاکوي، نوددې مهم دیني کار په ترسره کولو کې ،داسلامي میډیا رول یا نقش له هیچا ندی پټ ،او هرچاته یې فواید معلوم دي .لکه چې الله تعالی فرمايي :( كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ (۱۱۰ ال عمران ).

خوددې سربیره که بل چاته پرې دنیکیوامرکوو، نو خپل ځان به مو هم نوي هیر کړی ،که نه (خدای ج مکړه )بیا به ددې وعید لاندې راشو، چې : عَنْ أُسَامَةَ (رض) قال: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ(ص) يَقُولُ: «يُجَاءُ بِالرَّجُلِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُلْقَى فِي النَّارِ، فَتَنْدَلِقُ أَقْتَابُهُ فِي النَّارِ، فَيَدُورُ كَمَا يَدُورُ الْحِمَارُ بِرَحَاهُ، فَيَجْتَمِعُ أَهْلُ النَّارِ عَلَيْهِ فَيَقُولُونَ: أَيْ فُلانُ، مَا شَأْنُكَ أَلَيْسَ كُنْتَ تَأْمُرُنَا بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَانَا عَنِ الْمُنْكَرِ؟ قَالَ: كُنْتُ آمُرُكُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَلا آتِيهِ وَأَنْهَاكُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَآتِيهِ». (بخاری: ۳۲٦۷).

ژباړه : اسامه رض وایې چه له رسول الله ص نه مې اوریدلي، چې ویې فرمایل :دقیامت په ورځ به یو کس راوستل شي او دوزخ ته وروغورځول شي اوپه تیزۍ سره به یې کولمې د باندې تویې شي، په خپلو کولمو به دخره د څپر په شان غوبل کوي دوزخیان به دده چاپیر ه راټول شي، ورته وایې به ای فلان ! په تا څه شوي دی؟ آیا ته نه وې چې مونږ ته به مو امربالمعروف او نهی عن المنکر نه کاوه؟وایې به هو! تاسې ته به مې په نیکۍ امر کاوه ,خو خپله به مې نه کوله او تاسې به مې د منکر کار څخه منع کولئ خو خپله به مې کاوه .

که خبره رالنډه کړو!

نو وبه وایو، چې دژورنالیزم یا د صحافت فن داسلام ددعوت ،جهاد ،ټولنې کې دمنکراتود مخنیوي او دجامعې د اصلاح په شمول دنور وعلمي او خیریه کارونوپه ترسره کولو کې خورا اغیزمن نقش لوبوي او نن سبا یې مؤثریت خورا زیات دی، نو ځکه ویلای شو، چې دغه ډول فن صحافت یا ژورنالیزم په اسلام کې خورا درونډ مقام لري او اسلام داسې رسنیو ته دمنبراو محراب نه راوروسته په درونډ حثیت قایل دی، نوځکه ددې اړتیا ده، چې یو مسلمان صحافي یا ژورنالیست دې ددې پرځای چې دا سپیڅلی فن داسلامي اهدافو په تصویراو تمثیل وڅرخوي ،دلویدیځ ددې دسیسې مخه دې هم ډب کړي، چې دوئ دژورنالیزم سپیڅلتیا دخپلو شوماو ناروا موخو په کارولو بدرنگه کوي او دنړۍ دځوان نسل دبې لاریتوب په پار ترې کار واخلي !

سبا دصحافت له لارې ممکن او له اسانتیاوو سره مل دی ،دومره بـه دبلې لارې نـه وي ،علـماء او مسلمان لیکوالان دمطبوعاتو له لارې خپلې دیني او اصلاحي لیکنې خپروي او ټولنـه لـه منکراتـو څخه پاکوي، نوددې مهم دینـي کـار پـه تـرسره کولو کې ،داسلامي میډیا رول یا نقش لـه هیچا ندی پټ ،او هرچاته یې فوایـد معلـوم دي .لکـه چې الله تعالی فرمایي :( كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَر (۱۱۰ ال عمران ).

خـوددې سربیـره کـه بـل چاتـه پـرې دنیکیوامرکوو، نو خپل ځان به مو هـم نـوي هیـر کړی ،که نه (خدای ج مکړه )بیـا بـه ددې وعیـد لاندې راشو، چې : عَنْ أُسَامَةَ (رض) قال: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ(ص) يَقُولُ: «يُجَاءُ بِالرَّجُلِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُلْقَى فِي النَّارِ، فَتَنْدَلِقُ أَقْتَابُهُ فِي النَّارِ، فَيَدُورُ كَمَا يَدُورُ الْحِمَارُ بِرَحَاهُ، فَيَجْتَمِعُ أَهْلُ النَّارِ عَلَيْهِ فَيَقُولُونَ: أَيْ فُلانُ، مَا شَأْنُكَ أَلَيْسَ كُنْتَ تَأْمُرُنَا بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَانَا عَنِ الْمُنْكَرِ؟ قَالَ: كُنْتُ آمُرُكُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَلا آتِيهِ وَأَنْهَاكُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَآتِيهِ». (بخاری: ۳۲٦٧).

ژباړه : اسامه رض وایې چه له رسـول الله ص نه مې اوریدلي، چـې ویـې فرمایل :دقیامـت پـه ورځ بـه یـو کـس راوسـتل شي او دوزخ تـه وروغورځول شي اوپه تیزۍ سره به یـې کـولمې د باندې تویې شي، په خپلو کولمو به دخـره د څپـر په شان غوبـل کـوي دوزخیـان بـه دده چـاپیر ه راټول شي، ورته وایې به ای فلان ! په تا څه شوي دی؟ آیـا تـه نـه وي چـې مـونږ تـه بـه مـو امربالمعروف او نهی عن المنکر نـه کـاوه؟وایې به هو! تاسې ته به مې پـه نیکـۍ امـر کـاوه ,خـو خپله به مې نه کوله او تاسې به مـې د منکـر کـار څخه منع کولئ خو خپله به مې کاوه .

## که خبره رالنډه کړو!

نو وبه وایو، چې دژورنالیزم یـا د صـحافت فن داسلام ددعوت ،جهاد ،ټولنې کې دمنکراتود مخنیوي او دجـامعې د اصـلاح پـه شـمول دنـور وعلمي او خیریه کارونوپه ترسره کولو کـې خـورا اغیزمن نقش لوبوي او نن سبا یې مؤثریت خـورا زیات دی، نو ځکه ویلای شو، چې دغـه ډول فـن صحافت یا ژورنالیزم په اسلام کـې خـورا درونـد مقام لـري او اسـلام داسـې رسـنیو تـه دمنبراو محراب نه راوروسته په درونـد حثیت قایـل دی، نوځکه ددې اړتیا ده، چې یو مسلمان صـحافي یـا ژورنالیست دې ددې پرځای چې دا سپیڅلی فـن داسلامي اهدافو پـه تصـویراو تمثیـل وځرخـوي ،دلویدیځ ددې دسیسې مخه دې هـم ډب کـړي، چې دوئ دژورنـالیزم سـپیڅلتیا دخپلـو شـوماو ناروا موخـو پـه کـارولو بدرنګـه کـوي او دنـړۍ دځـوان نسـل دبې لاریتـوب پـه پـار تـرې کـار واخلي !

# افغانستان - قبرستان امپراتورها!

(سعید بدخشانی)

الحمد لله

همه ابرقدرت های متجاوز وخونخوار جهانی پس از اشغال افغانستان به شکست وذلت جبران ناپذیر مواجه شدند وبرندگی را در اهداف شوم شان حاصل نکردند .بریتانیا برای اشغال این سرزمین مجاهد پرور کوشش کرد ،قشون سرخ جماهیر شوروی به نوبه خویش هم حملات تهاجمی وبی شرمانه نمود تا که تصرف کنند اما نتو استند .در تاریخ امپراتوری بریتانیا بزرگترین کشتار دسته جمعی عساکر شان در افغانستان رخ داده است.وبینی استکبار جهانی (امریکا) نیز به خاک مالیده شد واز آتش افروخته آن جز خاکستر چیزی دیگر نخواهد ماند.

بلی !افغانستان سرزمین اولیا کرام است هر قدرتی طاغوتی به این کشور تجاوز نموده آن ابرقدرت به ذلت وزبونی ازاین سرزمین دلیران خارج شده است.تا جائیکه مشاهد میشود این ذهنیت بیگانه ستیزی وضد استعماری زاده واقعیت های تاریخی واجتماعی است.

اگر صفحات تاریخ این مرز بوم صفحه زده شود مشاهده میگردد هر زور گو ،قلدر ،بیگانه ومتجاوز در این مهد بیگانه شکنان محکوم به نیستی وشکست شده اند .به ویژه سلی های محکم تاریخ در چند قرن اخیر همواره از طرف ملت متدین

وغیور افغان بر روی اشغالگران وابرقدرت های خونخوار جهان زده شده است.

بهر صورت اگر بتاریخ مراجعه شود وحساسیت علیه استعمار وخصوصیت بیگانه ستیزی ملت مسلمان افغان و همچنان مقاومت همیشه آنها را علیه نیرو های خون آشام خارجی بازگو کنیم در آنصورت مقاله به طوالت کشانده میشود بنا به همین اکتفا میکنیم که امروز در ادبیات جهان افغانستان منحیث گورستان امپراطوری ها شناخته میشود.

نقطه محوری این مقاله شکست فلاکت بار وخروج حتمی آمریکا از افغانستان می باشد. البته این مووضوع بر اساس آرمان وآرزو مطرح نیست بلکه استوار بر شواهد و واقعیت های عینی جامعه افغانستان وحالات ناگوار امریکا ومتحدان اش میباشد. بیاید عوامل شکست بیگانگان را از داخل این کشور آغاز کنیم.

تاریخ به اثبات رسانده زمانیکه بیگانگان به این نتیجه میرسند مهره انتخاب شده دیگر موثریت در اجرای پلان شوم آنها ندارد، آنها را عوض نموده و مهره های سیاسی دیگر را روی کار میاورد. شوروی سابق نیز در افغانستان عین پالیسی را به پیش گرفته بود زمانیکه رجال روی صحنه سیاست نزد مردم بی اعتماد و منفور می شد، خاموشانه دست پنهان شوروی گلون آنها را می فشرد و به زندگی شان پایان میداد. امروز امریکا به عین معضله در افغانستان مواجه است. دولت بارک اوباما به عمق موضوع پی برده بود و میدانیست که کرزی که دست نشانده خود آنها بود دیگر هیچ نوع موثریت برای بقا قوا بیگانه در افغانستان ندارد. لذا امریکا در جستجوی کسی شد که شایسته تر و مناسبتر به مقام بردگی وتطبیق اهداف نامشروع شان دراین کشور باشد. پس انتخاب امریکا بین بد و بدتر خواهد بود وهست چونکه مهره های بازیچه امریکا همانند اشرف غنی وعبدالله ودیگر کاسه لسان از حمایت مردمی برخوردار نیستند.

زمانیکه امریکا ودیگربیگانگان به افغانستان حمله نمودند هدف شان معلوم بود مردم می دانستند اینها برای چه به کشور حمله نموده اند. اما امروز بعد از سیزده سال آیا اشغالگران به اهداف مطروحه و از پیش تعین شده خویش رسیده اند؟نخیر وهیچ گاهی هم این سفاکان به اهداف نافرجام شان نخواهند رسید.

امریکا نه تنها که برای مردم افغانستان خدمتی نکرد وزیر بنای نساخت بلکه برای رسیدن

به اهداف خود از خشونت کار گرفت و قربانی خشونت امریکا درافغانستان نه تنها مجاهدین نبود بلکه در آتش خشونت امریکا مردم مظلوم ما اعم از اطفال، زنان و کهن سالان به شهادت رسیدند ،وباغیات،زراعت مردم را قلع وقمع وخانه وکاشانه مردم را به مخروبه و ویرانه مبدل ساختند. بناً بعد از سیزده سال هیچ نوع امید و آرزوی بهبودی در موجودیت بیگانگان در کشور دیده نمیشود آنها شعار و عمل کرد شان زمین و آسمان تفاوت دارد ، در شعار دوست ملت افغان هستند اما در عمل کرد خون ریز ترین دشمن ملت به اثبات رسیدند. وجود بیگانگان در افغانستان فاجعه می آفریند امریکا به پیمانه بلیونها دالر آهن و باروت به جامعه سرازیر نموده طبیعی است هر انسان عاقل می داند به این پیمانه ای بزرگ باروت و آهن چه ارمغان را بملت ستمدیده و زیر پاه شده افغان خواهد آورد. از سوی دیگر مردم افغانستان و جهانیان مشاهده نمودن که به مردم غریب و بی وسع ما امریکایان وبیگانگان اند کترین کمک هم ننمودند بلکه کمک های امریکا وجامعه جهانی حیف و میل چند مزدور و وطن فروش گردید وبس.

قابل یاد آوریست مردم متدین کشور نه تنها از بیگانگان روی گردان شده اند بلکه از حکومت دست نشانده نیز متنفر می باشند. بیگانگان در شروع وعده های بسیار دادن و چهره نا شناخته را روی صحنه سیاست آوردند بنا در بین مردم روزنه های امید دیده میشد اما امروز بیگانگان هیچ دروغ عوام فریبانه در خریطه ندارند تا ملت را فریب بدهند.

بلی !در طول تاریخ در هر جامعه خواب اشغالگران و متجاوزان را مقاومت فرزندان اصیل اسلام حرام نموده، مقاومت که عزیز ترین فرزندان ملت را در خود دارد کسانیکه حاضر و آمده اند سر و جان بدهند اما هیچگاه حاضر نخواهند شد تا لحظه حضور بیگانگان و متجاوزین را در حریم ملت خود تحمل کنند. امریکا دقیقا پی برده است عناصر مخلص بردین و محب وطن را هیچگاه نمیشود از خود نمود چون آنها عکس العمل و ریزیش بر سنگر علیه تجاوز می باشند. در هر زمان مقاومت مردمی هدفمند بوده و اعلی ترین هدف را آنها دنبال میکنند ، مبارزه آنها برای اهداف انسانی است، آنها مبارزه میکنند تا حقوق انسانی شان را حصول نمایند و جامعه خود را آزاد کنند. بیگانگان بانگ تبلیغاتی خویش را براه انداخته تا از مقاومت چهره موحش و مخشوش به جهانیان نشان بدهند و در جستجو اند تا فرزندان ملت و

مقاومت را انسانهای وحشی طبیعت، عقب افتاده، ضد تمدن و بی فرهنگ معرفی کنند اما تاریخ به اثبات رسانده که بهترین های جامعه به مقاومت بر میخزند، کسانیکه از خلاقیت بر خوردار هستند و وجدان بیدار و آزاد منشی برای آنها حکم میکند تا در دفاع از دین و عقیده، حریم، نوامیس ملی، ارزشهای اخلاقی و اجتماعی مردم اش بپردازند. مقاومت یک عمل اخلاقی و معنوی است، آنها به مقاومت برخاسته اند تا از هویت جامعه خویش دفاع کنند. پس از آنجاکه مقاومت عمل رشید و خلاقانه است زاده وحشت، عقب افتاده گی و بی فرهنگی نمی باشد بلکه مقاومت توده ئی بیانگر بیدار بودن وجدان دینی و اجتماعی ملت می باشد .

مقاومت موجود انسان را وحشت زده می سازد چگونه امکان دارد بیشتر از ۴۲ پیشرفته ترین کشور های جهان بکمک همسایه ها بارها خود بزبان خویش ناکامی و شکست را در افغانستان علنا اعلان بدارد. مگر این ملت با خود چی دارد؟ که امپریالیسم جهان خوار را وادار بقبول شکست نموده است. کسانیکه افغانستان شناس هستند و معرفت دقیق از جامعه افغان دارند بیشتر متوجه میشوند که یگانه چیزی که زیاتر در جامعه می تابت آن باورهای دینی می باشد. این ملت روحیه جازم دارد، امیدوار هستند و باورمند می باشند راه انتخاب شده حق است و قدم گذاشتن در این راه با توفیقات الهی همراه می باشد. بهرصورت تاریخ به اثبات رسانده هیچ ابرقدرت عزم و اراده ملتها را سست و شکسته ننموده است بلکه همواره و همیشه اراده ملت ها هر مانع و سد را از بین برده است. باورمندیم عنقریب همه چه قلم بدستان، شاعرها، نویسنده گان، محصلین پوهنتون ها، استادان، کسبه کاران و کافه ملت صدا و سنگر واحد اتخاذ نمایند و به بهترین های ملت خویش خطاب نمایند بشکنید زنجیر های اسارت و استعمار را چون توهین بزرگتر از یک لحظه زیست در فضاء اسارت و اشغال نخواهد بود .حقا که امروز بازهم ملت افغان بچشمان خود مشاهده نمودند که این سرزمین به گورستان امپراتوری غرب(امریکا)مبدل شد وشرمسارانه وبدون کدام دست آورد پا به فرار نموده پرچم اشغال خویش را دراختتام سال۲۰۱۴سرنگون وبه زمین انداختند.به آرزوی گسترش نظام اسلامی در هرگوشه وکنار کشور هستیم.وماذلک علی الله بعزیز.

# آيا امريکايي بمبارۍ به

# د کابل شړيدلې اداره وساتلی شي؟

عبيد کوچي

که سړی د بهرني يرغل تېر ديارلس کلن عمر ته په غور سره وګوري نو په ځرګنده ښکاري چې د امريکې په فرمايش جوړه شوې اداره تر بل هر وخته اوس ډېره شړېدلې او ګډه وډه ده . ځکه له يوې خوا يې ملګری سازمان (ناټو) له جګړې لاس واخيست او خپل پوځونه يې وايستل ، له بلې خوا يې د دواړو ملکانو د اختلافاتو او ناندريو له امله کابينه لا نه ده جوړه او له بلې خوا سخت مالي بحران سره مخ ده . په دې هکله موجوده حکومت وايي چې دا مهال د هېواد ټول کلني عوايد دوه ميليارده ډالره دي خو بل لورته په کلني ډول پنځه ميليارده ډالره يوازې د پوځ او پوليسو لګښت دی . خو دا ګرد سره جنګي ځواک يوازې د امريکې د پلي پوځ دنده ترسره کوي ځکه دوی سره هوايي ځواک نشته نو په دې حساب د کابل اداره مجبوره ده چې که د هېواد هر ګوټ کې زور پرې راشي نو د امريکايانو پښتو ته به پرېوځي ، ډېر عذر او زارۍ به کوي تر څو دوی سره هوايي مرسته وکړي او مخالفين يې ورته وځپي . او بيا وروسته له هغه چې د امريکايانو له خوا يې پر هېوادوالو ښې ډېرې بمبارۍ وشي او مجاهدين هم د خپلو تلفاتو کمولو په موخه له سيمې ووځي ، نو دوی پرمختګ وکړي او بيا فوراً رسنيو سره په مرکه کې ووايي چې د دوستانو د بمبارۍ په اثر يې په لسګونو (ترهګر) وژل شوي او دا وخت د سيمې مهمې نقطې د (افغان ملي ځواکونو!) په لاس کې دي . دا يې د پوځ او پوليسو حال دی . همدارنګه يې راتلونکې کابينه درواخله چې خدای خبر له څرنګه شرمندګي سره به مخ کېږي . ځکه د دواړو مشرانو د خپل منځي ژمنو په اساس د کابينې (۲۵)پنځه ويشتو وزيرانو له جملې به ديارلس د اشرف غني او دولس د عبدالله وي . چې تقريباً د واک يو کلي مساوات تشکيلوي . د داسې ادارې د راتلونکې په اړه ډېر ساده سړی هم ښه ځرګند اټکل کولای شي . بل پلو د نوموړې ادارې د افرادو اخلاق ، چلند او اخلاص دی چې ټوله نړۍ يې فساد او درغلۍ ته حيرانه ده . تر

دې چې د نړیوالو ځېړنو له مخې په فساد کې دویم او دریم لمبر هېواد ګڼل شوی . په هر صورت ددغې ادارې مهم مکلفیت دادی چې په سیمه کې د امریکې او نورو غربي هېوادو ګټې وساتي او د اسلامي امت پر خلاف د یوې جبهې کار ورکړي . له همدې کبله اړوند چارواکي مجبور دي چې په هره پېښه کې د امریکایانو ننګه وکړي ، که پر هېوادوالو یې بمبارۍ کیږي او که یې نورو مواردو کې خپلې ملي ګټې په خطر کې لویږي. ددغې ادارې مسؤلین وظیفه لري چې د امریکې د بې پیلوټه بمباریو ننګه به کوي او چې هر څنګه وي ، دا به وایي چې واقعاً په دغه هوایي برید کې ترهګر وژل شوي ! خو دې خبرې ته مو باید پام وي چې د بهرنیانو له وتلو سره جګړه د هېواد ګوټ ګوټ ته رسېدلې تر دې چې ولسوالۍ خو لا پرېده په هر کلي او د اردو او پولیسو په هر مرکز او هره پوسته باندې وسلوال بریدونه روان دی نو ځکه دا امکان نشته چې د هېواد هر کلي ته بې پیلوټه الوتکې ورشي او بمونه پرې واچوي . او که فرضاً د امریکې هوایي ځواکونو له خوا همدومره ډېرو بمباریو ته چمتووالی ونیول شي نو بیا یې طبعاً لګښت هم زیاتیږي ، حال دا چې اوس مهال امریکایي پوځ د همدغه اقتصادي بوج له کبله زموږ له هېواده وتلي او نور دا توان نه لري چې تردې زیات تاوانونه په سر واخلي . مانا دا چې د کابل ادارې پوځ که هر څومره ځواکمن شي ، پرته له هوایي ملاتړه د مجاهدینو مقابلې ته نه شی ټینګېدای ، نو حتمي پایله دا

شوه چې د هېواد امنیت به نور هم ترې شړیږي او ستونزې به یې لا هم زیاتیږي له دغو واقعیتونو سره سره که د روسانو له وتلو وروسته حالات وڅېړو نو له اوسنیو سره یې چندان ډېر توپیر نه لیدل کیږي هغه مهال چې کله روسان ووتل نو افغان لوري ته یې خورا مهمې درنې وسلې پرېښودې ، لوی توغندي ، درانه توپونه ، زغروال ټانکونه او په سل ګونو ښې پخې او عصري جنګي الوتکې خو دا چې روسان هم له اقتصادي بحران سره مخ وو ، دا وس یې نه درلود چې تر ډېره د افغان پوځ لګښت پر غاړه واخلي ، هماغه ؤ چې د روسي ځواکونو له وتلو دوه نیم کاله وروسته د کابل اداره وشړېده او واکمني یې پای ته ورسېدله . اوس داسې ښکاري چې بیا هماغه حالات تکراریږي . نو دابه ومنو چې تر څه وخته به د غربیانو غور و پښې وي خو د کابل چارواکي دې په دې ښه پوه شي چې د تل لپاره د بهرنیانو پر مټ او مرستو تکیه نه شي کولای او دوی به خامخا د خپل هغه ولس په مقابل کې ماتې خوري چې تر کلونو یې د بهرنیانو خوشالولو او خپل جیب ډکولو په موخه وځورول او بې پته کړل . لنډه دا چې د کابل چارواکو ته لازمه ده څو خپلې خومارې سترګې وغړوي ، د خپل ملت دیني او ملي ارزښتونو درناوی وکړي او د هېواد په اساسي ګټو له سوداکولو توبه وباسي.

# نامتو مسلمان فاتحین!

مفتي حبيب الله قاسمي

دکابل فاتح

حضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه

**یادونــه** :اسلام پـه خپـل تـاريخ ګڼ ستر فاتحين لري چې دهغوی دلورينو له برکته په نړۍ کې داسلام بلنه خپره شوه ، دلته په لنډ ډول دهغو سترو فاتحينو يادونه اوپيژندنه کووچې نومونه يې په لاندې ډول دي :

١– دکابل فاتح حضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه : ٢– دبلخ اوهرات فاتح حضرت احنف بن قيس رحمه الله ٣–دفارس فاتح سعدبن ابي وقاص رضی الله عنه ۴.دمصر اوبيت المقدس فاتح حضرت حضرت عمروبن العاص رضی الله عنه ۵– دعراق فاتح حضرت خالدبن وليد رضی الله عنه ٦– دافريقا فاتح حضرت عقبه بن نافع. رحمه الله ٧.داندلس فاتح : طارق بن زياد . رحمه الله ٨ــ دمنځنۍ اسياء فاتح قتيبه بن مسلم باهلي رحمه الله ٩– ــ دسندهـ فاتح محمد بن قاسم رحمه الله ١٠–دبيت المقدس فاتح صلاح الدين ايوبي رحمه الله

په دې فاتحينوکې لومړی دکابل فاتح نامتوصحابي حضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه پيژندنه اويادونه کوو چې دنوموړي په وخت کې داسلام بلنه تر کابله را ورسېدله . که څه هم تر ده دمخه د اسلام بلنه دهرات له لارې دلومړی ځل له پاره دنامتو تابعي حضرت احنف بن قيس رحمه الله په لاس رارسيدلې وه . که خدای کول دهغه يادونه ترحضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه وروسته کوو:

**[1]دحضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه پيژندنه**

عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه قريشي و اودنسب لړۍ يې په دريم پښت کې له پيغمبرصلی الله عليه وسلم سره يوځای کيږي. نوموړي دمکې دفتحې په ورځ ايمان راووړ ، د لوړ حيثيت او لويې سينې خاوند و، دتبوک له

کړاوه ډکه غزا کې یې هم ګډون کړی و. نامتو فاتح و، دری کاله دسیستان والي و، ډیر متواضع انسان و، ټول کارونه به یې په خپل لاس کول، دروازې به یې تل د عاموخلکوپرمخ پرانیستې وې او د باران په ورځ به یې له عامو خلکوسره دښار کوڅې پاکولې.

دحدیثو په کتابونو له دغه نومیالی صحابي څخه څوارلس حدیثونه روایت شویدي چې دوه حدیثونه یې امام بخاري اوامام مسلم هم روایت کړي دي.[1]

**[۲] : دحضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه داسلام را وړلو کیسه**

د مکې دفتحې په ورځ پیغمبر صلی الله علیه وسلم د کعبې دروازه پرانېستله د حضرت بلال رضی الله عنه او حضرت اسامه رضی الله عنه په ملتیا ورننوت، اودروازه په ځان پسې یې وتړله، دا مهال په کعبه کې دننه اودباندې ۳٦۰بتان ولاړوو، لومړی یې په کعبه کې دننه ټول یې ونړول دوه رکعته نفل یې وکړل، په ټوله خونه کې راوګرځید دالله اکبر ناري یې ووهلې د کعبې دروازه یې چې پرانېستله ګوري چې دحرم غولی له مشرکانو ډک دی اودټول دځان په اړه دپیغمبر صلی الله علیه وسلم د وروستۍ پریکړې په اړه اندېښمن ناست وو او انتظار یې یوست چې د دوی په اړه به څه وروستۍ پریکړه څه کیږي.

پیغمبر صلی الله علیه وسلم د کعبې مبارکې د دروازې دواړه بازوګان ونیول اوله حمد اوثنا وروسته یې وفرمایل: تاسوڅه فکر کوئ چې زه به له تاسوسره څه ډول چلند وکړم؟ ټولوپه یوغږ ورته وویل: ته لورونکی اود لورونکي ورور ځوی مویې، بیاپیغمبر صلی الله علیه وسلم ورته وویل: نن پرتاسي هیڅ ملامتیانشته ورځئ ټول ازادیاست.

دښـــني دغـــه ســـتر اعـــلان دمکـــې پراوسیدونکو ښه اغیږ وکړ اوزیات شمیریې ایمان راووړ اوپه دغو ایمان راوړونکو کې یوهم یونوی ځوان او زموږ دکابل فاتح حضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه و. کله یې چې دایمان راوړلو اعلان دپیغمبر صلی الله علیه وسلم په وړاندې کاوه نوپیغمبر صلی الله علیه وسلم ته یې ځان داسې ور وپیژانده: د خدای رسوله! زه ستادتره زوی (عبد الکعبة) یم، پیغمبر صلی الله علیه وسلم په ډیره مینه ورته وویل: له نن ورسته به ستا نوم عبدالرحمن وي.[2]

---

۱ دمشري غوښتنې دغندنې په اړه یې مشهور حدیث یې په صحیح البخاري: ۱۳ / ۱۱۰،صحیح مسلم (۱٦۲٥)سنن نسائي په کتاب الامارت کې او مسند احمد: / ٤۷٦،، ٥ / ٦۱، اوالمستدرك: ۳ / ٤٤٤کې راوایتونه په همدې شمیرو موندل کیږي.

۲ ددغه نامتو صحابي پېژندنه له لاندې کتابونو څخه راواخېستل شوه:

لومړی: دامام ذهبي رح سیر اعلام النبلاء: دوهم ټوک ۵۷۱.

**[۳] : حضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه دسيستان والي په توګه:**

. يووخت زموږ دهېواد جنوبي سيمي دپخواني سسيتان هېواد برخې چې پکې داوسني کابل ښار اوهرات او کندهار په ګډون اودهېواد جنوبي سيمې راتلې. ۳دحضرت عثمان رضی الله عنه په زمانه کې د خراسان او اوسني افغانستان خلکو چې زياته سرزورئ وکړې نو د خراسان والي عبدالله بن عامر رضی الله عنه دحضرت عثمان رضی الله عنه په مشوره نوميالی صحابي اوډپوهې خاوند حضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه دسيستان د والي په توګه له اته زره مجاهدينو را واستاوه ،نوموړي دسيستان بغاوت ارام کړ اودخپلو فتوحاتولمن يې ترزابله ورسوله. حضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه دری کاله د سيستان والي پاتي شو۴

**[۴] : دحضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه په لاس په زرنج کې ديوښکلی مدرسې تاسيس :**

په ۳۵هجري کال دحضرت عثمان رضی الله عنه له شهادت وروسته حضرت معاوية رضی الله عنه يوځل بيا حضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه سيستان ته راوستاوه ،له هغه سره داځل نوميالی تابعي حضرت حسن بصري رحمه الله هم ملګري و ، عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه د زرنج له نيولو وروسته دزرنج ښار په ((ادينه)) کې يوه ښکلی جومات

---

دوهم : دامام ابن معين التاريخ: ۳٤۹،

دريم : دنامتو خليفه رح :طبقات خليفة: ۱۱، ۱۷٤.

څلورم :دنامتو خليفه رح : تاريخ خليفة: ۲۱۱.

پنځم: دامام بخاري رح التاريخ الكبير: ٥ / ۲٤۳ ۲٤۲.

شپږم:دامام قتيبه رح المعارف: ۳۰٤، ٥٥٦.

اوم : دامام فسوي رح تاريخ: ۱ / ۲۸۳.

اتم: دامام رازي رح الجرح والتعديل: ٥ / ۲۳۸.

نهم:دامان ابن عبدالبر رح الاستيعاب: ۲ / ۸۳٥.

لسم:دامام ابن عساكر رح تاريخ دمشق : ۹ / ٤۸۱ / .

يولسم: دامام ابن اثير رح :أسد الغابة: ۳ / ٤٥٤.

دولسم:دامام مزي رح تهذيب الكمال: ۷۹۳.

ديارلسم : دامام ذهبي رح تاريخ الاسلام: ۲ / ۲۳۱.

څوارلسم : دامام ذهبي رح العبر: ۱ / ٥٥.

پنځلسم :دحافظ ابن حجر رح تهذيب التهذيب: ٦ / ۱۹۱ـ ۱۹۰.

شپاړسم:الاصابة: ٦ / ۲۸٤.

اولسم:خلاصة تذهيب الكمال: ۲۲۸.

اتلسم:شذرات الذهب: ۱ / ٥۳ و ٥٤ و ٥٦.

نولسم :تاريخ افغانستان بعد ازاسلام . ۱٦۰- ۱٦۱مخونه داستاد عبدالحی حبيبي ليکنه .

شلم: دافغانستان لنډ تاريخ دپوهاند عبدالحي حبيبي ليکنه او د استاد عبدالروف بينوا ژباړه .

۳ دافغانستان لنډ تاريخ دپوهاند عبدالحي حبيبي ليکنه او د استاد عبدالروف بينوا ژباړه . ۲۰مخونه .

---

٤ طبقات الكبرى : اوم ټوک ۱٥۷مخ اوعبارات يې داسي دي (وروى الحسن عن عبد الرحمن بن سمرة أنه غزا معه كابل والأندقان والأندغان وزابلستان ثلاث سنين)

اوپه همدې طبقات کبري دحنس بصري روايت ده : قال حدثنا عبد المؤمن أبو عبيدة قال سمعت رجلا سأل الحسن فقال يا أبا سعيد هل غزوت قط قال نعم غزوة كابل مع عبد الرحمن بن سمرةاوم ټوک ۱۷٥مخ

اوښکلې مدرسه ودانه کړه او حضرت حسن بصری رحمه الله پکې شپږ میاشتې تدریس هم وکړ .۵

**[۵] : دحصرت عبدالرحمن بن سمرة په لاس دهلمند د((زمینداور )) بوت ماتېدل :**

په دې موده کې حضرت عبدالرحمن بن سمرة ﷺدهلمند په (زمینداور) کې (زور) نومی دسرو زرو لوی بت چې په (کوه زور) کې ولاړ و او سترګې یې له یاقوت جوړې وې، مات کړ اودبت ترماتولو وروسته یې د هغه ځای خلکو ته وویل : داسره زر او قیمتي کاڼي تاسو در واخلئ زموږ ورته اړتیانشته )٦.

**[٦] : دحضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه په لاس**

**دکابل فتحه :**

ترهغه وروسته پر کال ۴۳هجري کې عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه دکندهار اوعزني له لویې لارې دکابل د(اوسنی ګذرګاه) له لارې کابل ښار ته راغی ،دکابل ښارېې کلابند کړ اوپه کاڼویې د منجنقونو په مرسته دکابل له ښار تاوی شوی کمربندي دیوال وویشت ،په دیوال کې درز اولاره پیدا شوه، که څه هم دکابل ښار دهغه مهال واکمن کابل شاه فوځ دمقابلې له پاره له دیوال څخه دباندې راووت اوله مسلمانانو سره یې سخته جګړه وکړه خو مسلمانانو بیرته جوابي برید وربانديې وکړ (کابل شاه) که څه هم دجګړې په ډګر کې ډیر غښتلی و ،خوله ډیرې جګړې وروسته یې وویل :له داسې لښکرو سره دجګړې له لارې هیڅ ډول بریالیتوب نه شي ترلاسه کېدلای) له ډیرو خونړیو جګړو وروسته مسلمانانو کابل ونیو او ګڼ شمېر مسلمانان شهیدان شول. ۷

**[۷] : دافغانستان په فتوحاتوکې ددری سوه صحابه وو رضی الله عنه ګډون**

دکابل په فتحه کې له حضرت عبدالرحمن بن سمرةرضی الله عنه سره دحضرت عمر رضی الله عنه زوی حضرت عبیدالله رضی الله عنه .۸ او امام حسن بصري رحمه الله هم ملګری وو.

له دوی سره په دې عزاګانودری سوه صحابه رضی الله عنهم برخه لرله ،امام بخاري رحمه الله په (تاریخ کبیر) دامام حسن بصري

۵ تاریخ افغانستان بعد ازاسلام . ۱٦۰- ۱٦۱مخونه داستاد عبدالحی حبیبي لیکنه

دسیستان تاریخ ۸۵مخ اوفتوح البلدان : ۴۸۸.

٦ تاریخ افغانستان بعد ازاسلام . ۱٦۰- مخونه داستاد عبدالحی حبیبي لیکنه

دسیستان تاریخ ۸۵مخ اوفتوح البلدان : ۴۸۸.

۷ طبقات الکبری دابن سعد پنځم ټوک ۴۷مخ اودسیستان تاریخ ۸۵مخ .فتوح البلدان : ۴۸۸مخ. الاصابه اوم ټوک ۲۲مخ دحافظ ابن حجر رح لیکنه . تاریخ افغانستان بعد ازاسلام دپوهاند حبیبي لیکنه ۱٦۰مخ .

۸ الاستعیاب : لومړی ټوک ۳۱۱مخ دحضرت عبیدالله رضی الله عنه پیژندنه

رحمه الله له خولي روايت کوي : له موږ سره دخراسان په غزاګانوکې درې سوه صحابه ملګري وو .اوامام حسن بصري رحمه الله دخولي عبارات داسې وو : (لقد غزوتُ إلى خراسانَ معنا فيها ثلاثُ مائة من أصْحَاب محمَّد صلى الله عليه و سلم)۹

**[۸] :دکابل په فتحه کې د نامتو امام حسن بصري رحمه الله ګډون اوپه افغانستان کې درې کلنه استوګنه**

امام حسن بصري رحمه الله په خپله وايي :چې له ماحضرت عبدالرحمن سره دکابل سفر هم کړی او اوامام حسن بصري توري داسي دي : (سافرتُ مع عبد الرحمان بن سمرة إلى كابلَ) ۱۰.

دغه راز امام حسن بصري رحمه الله وايي : مادکابل په فتحه کې له حضرت عبدالرحمن بن سمره رضی الله عنه سره ګډون لاره اوعبارات يې داسي دي چې ديوه سړي دپوښتنې په ځواب کې يې وويل : يا أبا سعيد هل غزوت قط ؟ قال: نعم غزوة كابل مع عبد الرحمن بن سمرة۱۱.

امام حسن بصري رحمه الله وايي :ماپه خراسان (اوسني افغانستان )کې درې کاله تير کړل ۱۲ اودکابل په ګډون دزابل په غزاګانوکې مې ورسره ګډون درلود اودامام حسن بصري رحمه الله عبارات داسي دي :(وروى الحسن عن عبد الرحمن بن سمرة أنه غزا معه كابل والأندقان والأندغان وزابلستان ثلاث سنين ۱۳)

**[۹] : له افغانستانه دحضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه بيرته ستنېدنه**

حضرت عبدالرحمن بن سمرة ﷺله کابله دبېرته ستنيدلو پرمهال ځوتنه افغانان دغلامانو په ډول له ځانه سره بوتلل چې وروسته يې ازاد کړل اودمسلمانانوستراامامان وګرځيدل ۱۴ چې درې تنه دزيات شهرت خاوندان شول اونومونه يې دادي :

۱ـامام محکول کابلي چې دامام زهري له وينا سره سم په فتواله هغه ځخه زيات بل د پوهې خاوند په خپل وخت کې نه و۱۵ نوموړی دشام

۹ تاريخ کبير دامام بخاری رحمه لاله پنځم ټوک ۴۵۲مخ اودغه راز همدغه خبرې امام ابن عدي دالکامل لومړی توک ۱٦٦مخ .کې راغلی دي .

۱۰ دحافظ مزي تهذيب الكمال ٦/ ۱۲۳مبارك بن فضاله.

۱۱ طبقات الكبرى دامام ابن سعد اوم ټوک ۱۷۵مخ.

۱۲ طبقات الكبرى : اوم ټوک ۱۵۷مخ

۱۳ طبقات الكبرى : اوم ټوک ۱۵۷مخ

۱٤ اودسسيتان تاريخ ۸۵مخ تاريخ افغانستان بعد ازاسلام دپوهاند حبيبي ليکنه ۱٦۳مخ .

۱۵ تاريخ افغانستان بعد ازاسلام دپوهاند حبيبي ليکنه ۷۹۰مخ .الاعلام اتم ټوک ۲۵۲مخ .تذكرة الحفاظ لومړی ټوک ۱۰۱مخ تهذيب التهذيب دحافظ ابن حجر ليکنه لسم ټوک ۲۸۹مخ دابن خلکان تاريخ دوهم ټوک ۱۲۲مخ ، اودامام ذهبي تاريخ اسلام پنځم ټوک ۵مخ اودمام ذهبي ميزان الاعتدال : دريم ټوک ۱۹۸مخ اوحلية الاولياء پنځم ټوک ۱۷۷مخ . (۱) الطبقات الكبرى ابن سعد (۷/٤٥۳)، والتاريخ الكبير للبخارى (۸/۲۰۰۸)، والجرح والتعديل (۸/۱۸٦۷)، وسير أعلام النبلاء

نامتو محدث وبلل شو اوهلته وفات هم شو اوپه حدیثوکې دنوموړي دستر مقام له امله یې امام ذهبي رح پیژندنه دنامتو محدثینو په کتارکې په خپل کتاب (تذکرة الحفاظ) کې راوړي ده .۱٦

**۲ـ عمروبن عبید کابلی.۱۷**

۳ـ امام نافع کابلي رحمه الله : نوموړی نامتو تابعي ګڼل کیږي د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه ازاد کړی غلام و. له نامتو صحابه وو لکه ابوسعید خدري اوعبدالله بن عمر اوحضرت ابو هریرة، او حضرت عائشة رضی الله عنهما څخه یې روایتونه کړي دي امام بخاري رحمه الله دنوموړي سند ترټولو غوره سند (اصح الاسانید) بولي .۱۸ د حدیثو نامتو امامانو لکه ابن شهاب زهری او اوایوب سختیاني او په ځانګړي ډول امام مالک رحمهم الله ترینه راویتونه اخیستي دي اوپه ۱۲۰هجري په مدینه منوره کې وفات شوی دي .۱۹

---

(۱۵۵/۵)، وتاریخ الإسلام (۳/۵)، ، وتهذیب التهذیب (۲۸۹/۱۰ - ۲۹۳). تقریب التهذیب (٦۸۷۵).

۱٦ تذکرة الحفاظ لومړی ټوک ۱۰۱مخ .

۱۷ دسیستان تاریخ ۸۵مخ مروج الذهب دوهم ټوک ۱۹۲مخ .

۱۸ علوم الحدیث دامام ابن صلاح رحمه الله ۳۸مخ .

۱۹ دزرکلي الاعلام پنځم ټوک ۲۵۲مخ . دابن خلکان تاریخ لومړی ټوک ۳۸۴مخ. تهذیب التهذیب دحافظ ابن حجر لیکنه لسم ټوک ۳۱۲مخ .دامام ذهبي تاریخ اسلام پنځم ټوک ۱۰مخ دامام بخاري تاریخ کبیر (۲۲۷۰/۸) ودامام رازي الجرح والتعدیل (۲۰۷۰/۸) اوامام ذهبي سیر أعلام النبلاء (۹۵/۵)

**[۱۰] : دحضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه وفات**

په ۴۵هجري کال کې بېرته دعراق بصرې ته ستون شو اوپه ۵۰هجري کال په بصره کې له دې نړۍ سره مخه ښه وکړه او نامتو صحابي زیاد بن ربیع رضی الله عنه یې دجنازې لمونځ وکړ ۲۰.

په بصره کې یو کوڅه دده په نامه د((سکة ابن سمرة)) یادیده ،اوپه بصره کې یې ځانته په خپل کور کې یوجومات دکابل د ودانیو په څېر له ځان سره د بیولوافغانانو په لاس جوړ کړ.۲۱

**نور بیا......**

---

اوتاریخ الإسلام (۱۰/۵). تاریخ افغانستان بعد ازاسلام دپوهاند حبیبي لیکنه ۷۹۲مخ.

۲۰ تهذیب التهذیب اودنوموړي دپیژندنې مخکنۍ اخېستځایونه .

۲۱ فتوح البلدان :۴۹۹ مخ. دسیستان تاریخ: ۸۹مخ. دامام طبري تاریخ : څلورم ټوک ۱۷۰مخ . داستاد حبیبي تاریخ افغانستان بعد ازاسلام: ۱٦۴مخ .

لومړۍ برخه

# دليکنې او ليکوالۍ
## علمي آرونه او معيارونه

م. شمس... منصور

دکاغذ په سينه چې قلم ښوري توري (حروف) او لفظونه جوړوي او د تورو او الفاظو له ګډ ترکيب کلمې جوړيږي، د هدف بيانولوپه موخه کلمې د يو بل پورې نښلول کيږي او په همدې اساس ديو شمېر کلمو او الفاظو په نښلولو او ترکيب سره کلام اوجملې رامنځته کيږي،بيا دجملو په ترکيب اويو ځای کولو پراګراف جوړيږي، بيا دګڼو لفظونو، جملو او څو پراګرافونوپه يوځای کولو يو مضمون يا يوه ليکنه رامنځته راځي.

د ورځينو يادښت ليکونو نيولي تر ورځپاڼو، مجلو اوکتابونو پورې ټول د تورو او الفاظو ترسيم شوې بڼې دي ، هر تن (که لوستی وي يا نالوستی) هغه دالفاظو اوکلمو کارولو ته اړتيا لري او په نن پرمختللې زمانه کې دالفاظو سره لوبيدو خو دومره عامه اهميت مندلی، چې شايد په وړاندې بشري تاريخ کې يې دومره نه و مندلی، په نړۍ کې نن سبا لکونه ورځپاڼې، جريدې او مجلې له چاپ را وځي

او په هغو کې ځيني دچاپ د تيراژ له پلوه مليونونه تيراژ لري ، خو داحقيقت هرځای هرڅوک مني ، چې ترخلکو دپيغام رسولو لپاره ښه ذريعه او مؤثره وسيله ليک دی... په دې اړه څوک اختلاف نلري.!

که څه هم نن سبا دبرېښنايي ميډيا شور او ځوږ دی؛ خو داهم څرګند حقيقت دی چې دبريښنايي ميډيا (تلويزون،کمپيوټر اوانټرنيټ) دلارې انسان کوم علوم اومعلومات ترلاسه کوي، سره ددې چې له دغولاروڅخه دمعلوماتو په ترلاسه کولوکې زياته اسانتيا اوتيزي رامنځته شوې، د"سي ډي سافټ وير" په جوړيدو ګڼ ټوکونه اوضخيم کتابونه تردې پورې چې بسته اومجهز کتابتونونه په يوه کوچنۍ سي ډي کې راځي او په کاله کې يو ناست سړی هم دخپل کمپيوټر په ښېښه هغه بې پناه علمي مواد اومعلو مات مندلی شي، ليکن پرلپسي تجربو ښودلې چې هغه علم اومعلومات چې له چاپي ميډيا، يا کتابونو اوليکنو څخه ترلاسه کيږي، د هغو (چې دانټرنيټ، تلويزون اوکمپيوټره ترلاسه

کېږي) نه زيات مؤثر اوګټور دي او هم دا راز کوم راښکون او خوند چې دکتاب، ورځپاڼې او مجلې په مطالعه کې شته دی ، هغه په کمپیوټر او بل څه کې نشته.

لنډه داچې دتورونه الفاظ منځته راځي او دالفاظو نه جملې جوړېږي، دڅو جملو په ترکیب اويوځای ترلولو فراګراف منځته راځي او دڅو فراګرافونو مجموعې ته مضمون او دڅو لیکنو اومضامینو ټولګې ته کتاب ویل کېږي؛ خو دهر مضمون اوهر کتاب اساس توري او الفاظ دي...

اوحرف هغه کلمه ده، چې نه دچا لپاره نوم دی اونه له کوم مصدر نه اخیستل(مشتق) شوی دی،بلکې دنورو کلمو سره په نښلولو او ترلو معنی پیدا کوي، لیکن دحرف پرته اسم اوفعل هم بیکاره دي، د حرف پرته په کلام کې ربط نه شي رامنځته کېدای یا په بله وینا دحرف راوړو پرته هره خبره بې خونده او بې معنی وي، هم دا وجه ده چې دهرې ژبې یادولو اوپه هره ژبه کې دلیک لوست لپاره دحروفو ډولونه او پخپل پخپل ځای دهغو دکارولو هنر پیژندل له ضروریاتو او اول یاتو څخه ګڼل کېږي او هم د هرې ژبې دحروفو سهي املاء او انشا دلیکوالۍ لومړی مرحله ده، که هر تن په دغه مرحله کې بریالی ووت دهغه په اړه دا وړاندینه کول اسانه ده، چې هغه به د پر لپسي زیار او د علمي ذوق په درلودو د یو کامیاب قلموال په حیث ځان څرګند کړي.

ترهر څه دمخه راځو هغو ګرامري معیارونو او اصولوته، چې دهغو په مټ یوه لیکنه یا مضمون دمعیاري لیکنې اومعیاري مضمون بڼه خپلولی شي، چې په دې لړ کې اول دمعاصرلیکدود؛ دلیک نښو غورچاڼ را اخلو :

## لیک نښې :

لیک نښې هغه دي، چې دیو عبارت په ظاهري ښکلا، لوستنه اوپوهېدنه کې لازمه اساني راولي، جملې اوکلمې سره بېلوي، له پخوانه په لیکنو کې دلیک نښو کارول دود دي، چې دوخت په تېریدو سره پکې ځیني بدلونونه هم رامنځته شوي،لیکن دا اتفاقي ده چې دهر دور لیکوالو اوعالمانو دوامدار پخپلو مضامینو او لیکنو کې دلیک نښو کارولو اصل ته شا نده ګرځولي او په کلکه یې رعایتاو راوړي دي.

دلیک نښو کارول که یولورته لوستونکي سره دمعانیو اومفاهیمو په لوستنه اوپوهېدنه کې مرسته کوي او دهغه په ذهن کې مفهوم په اسانۍ سره کینوي، بل پلو د املاء او انشا د معاصر ادبي ذوق او سلیقې سره دلیکوال دبلدیتا اوپوهې ښکارندویه هم دي.

په موجوده دور کې دنړۍ په هېڅ یوه ژبه کې هېڅ یو معیاري کتاب دلیک نښو پرته نه چاپېږي،په ورته توګه دنړۍ په هیڅ معیاري ورځپاڼه اومجله کې دلیک نښو پرته دکوم لیکوال لیکنه یامضمون منل کېږي نه ، نو هغه

درانه ملګري چې معاصره ليکوالې يادول په پام کې لري، هغوئ بايد دليک نښو کارولو تمرين ته متوجه شي او هغوئ بايد خپلوليکنو ته دليک نښو ښکلا ور وبښي او بايد وپيژنو چې ليک نښې دکومې خاص ژبې او کوم خاص ادب نماينده ګې نه کوي، بلکې په پښتو، فارسې،عربې اونورو کې ژبو کې ورته ښه لري او په ډېرو کمو ځايونو کې يې ترمنځ توپير شته او هغه هم ډېر کم... د يوې ژبې په ليک نښو پوهېدنه د ټولو ژبو د ليک نښو پېژندل اسانوي.

که څه هم دليک نښو تشريح دلته دبحث موضوع نده، خو داچې دنن معاصره ليکوالي دليکنو نښو په استعمال ډېر زيات ټينګارلري او دليک نښو پرته هېڅ ليکنه ياکتاب معياري مقام نلري، نو دلته په لنډ ډول هغه ليک نښې چې د پښتو ژبې د معاصر ليکدود څخه جز ګرځيدلې تشريح کوو:

**۱.ټکی**(.) دغه نښه دجملې په پای کې اېښودل کېږي، چې دجملې پای ته رسيدل،تمېدل اوتوقف ښيي لکه:

زه پرون مدرسې ته لاړم،يوکتاب مې ووايه، بيا ژربيرته راغلم.

دکومې جملې په پای کې چې دتوقف کومه نښه شتون ونلري،هغه جمله مستقله نه وي،حتی کله نه کله دجملې له اصلي شکل و وزې اوښايې ديوې کلمې ياکوم عبارت حيثيت پيدا کړي. په همدې توګه که چېرې ديوې کلمې يا کوم عبارت په پای کې دتوقف ياتمېدو نښه رانشي هغه ديوې جملې ښه پيدا کوي لکه

- راشه

- راشه.

په لومړي مثال کې چې دراشه کلمې وروسته ټکی نشته نو فقط يوه صرفي کلمه ده خو په دوهم مثال کې دراشه. ترکلمې وروسته ټکی راغلی دی، نوې داسې جمله جوړه کړېده چې مستقله معنا لري اودمفرد او امر حالت ښيي

هم داشان ټکی(.)دهغو ټولو جملو وروسته راځي، چې نه دپوښتنې حالت ولري او نه دغږ لکه:دظلم کاسه نسکوره ده.

بل ډېر ځلي په يوه ليکنه کې دمخففاتو د ليکلو اړتياپېښه وي او يونوم دتکرار او يا اوږدوالي له وجې نشي راتلای، هغه په مخفف شکل ياتورو ليکل کېږي، هلته دهر لنډ شوي توري وروسته دټکي اېښودل لازمې دي لکه:

- م.م.م. ( دملګروملتونو موسسه)

.ا.ا.ا. (اسلامي امارت)

.د.ا.ع.ش. ( دولت الاسلامی عراق والشام)

په نورو ژبو کې ټکی دحسابي رقمونو منځ کې داعشاريې په توګه اېښودل کېږي خو په پښتو کې يې اېښودل ګډوډي راولي ځکه پښتو کې ټکی اوصفر يوشکل لري نوغوره داده چې په

پښتو کې د حسابي رقمونو په منځ کې داعشاریې دنښې په توګه کامه وکارول شي لکه:

۳۰،۲( دیرش افغانۍ اودوه پوله) ۴۰،۵۰( څلویښت افغانۍ او پنځوس پوله، بل دهغو عدودونو اوتهجي تورو په پای کې چې دهغو په وسیله مطالب یاعناصر... شمېرل شوي وي لکه: ۱. لومړی. الف.

## ۲.چپه پېښ یاکامه(،):

دغه نښه دیوې لنډې درېدنې ووقفې لپاره کارول کېږي، او ددو کلمو اویا دوه نیمګړو جملو په مینځ کې استعمالېږي، خو په نسبت ټکي(.) ته دتمېدو توان یې لږدي،کامه دنورو نښو په خلاف داستعمال ډېر ځایونه لري اونه یوازې دمعنا سره مرسته کوي بلکې دلیکنې حرکت اوتوازن هم تنظیموي، دکلمو په مینځ کې چې استعمال شوي وي لکه: احمد، محمود اومحمد په امتحان کې بریالي شول.

حمزه خان شنواری دپښتو غزل نوښتګر غزلبول،لوی شاعر، ادیب او مفکرو.

## ۳.ټکی اوچپه پېښ، یاځنډ نښه(؛):

داوږدې وقفې او دریدنې لپاره لیکل کېږي اوپه هغو مرکبو جملو کې چې دمعنا له مخې شریکې وي، استعمالیږي لکه:

له هغه علم نه چې اخلاق ورسره نه وي؛ ناپوهي غوره ده.

ځینې لیکوالان ددې لپاره چې دځنډنښې ددقیق استعمال نه ځان خلاص کړي، په ځا یې کامه لیکي او په داسې حال کې چې ددغې نښې استعمال دبلې هرې نښې سره توپیر لري او لویه ځانګړتیا یې داده چې دمتوازنو جملو اوفقرو په منځ کې باید راشي،کله چې دوه عمده فقرې په (او،خو،دپاره) اودیته ورته نورو کلمو ونه تړل شي، هلته ځنډنښه حتمي ده لکه:ماشوم ته په وخت سزا ورکول لازمي کاردی؛ په بې ځایه وهلو سره سپین سترګی عادت کېږي.

## ۴.دوه ټکي(:):

دیوې کلمې یایوې جملې دتشریح اوتفسیرلپاره استعمالیږي، یعنې داچې له جملې اوکلمې وروسته مطلوبه شرح لیکل کېږي:

لکه: دمحمودباغ ډېر ښکلی دی:ښه ګلان، خوږې میوې او روانې اوبه لري.

یالکه:دبري ستنې دادي:پوهه، تقوی، روغتیا،اخلاق اوروزنه.

## ۵.پوښتن نښه(؟)

دغه نښه دپوښتنې پروخت استعمالېږي او دهرې سوالیه جملې په پای کې راوړل کېږي، لکه: داسړی څوک دی؟ دلته څه کوي؟

## ۶.غږنښه (ندائیه) !

که څه هم غږ نښه داستعمال لپاره ګڼ ځایونه لري، خو په لیکلو کې یې غور پکاردی،

دغږ اوانداء لپاره کارول کیږي له منادی او امریه جملې وروسته لیکل کیږي لکه:هلکه راشه! ژرراځه!

کله چې په یوه جمله کې افسوس اوحیرانیتا ښول وي لکه: دا څومره لوی غردی؟! ایا دومره ظلم هم څوک کوي؟!

هم دا راز د"افرین" تنبیه، تعجب اوخوشالۍ په وخت کې راوړل کیږي، لکه:سبحان الله!ماشاء الله! دا څومره ښکلی باغ دی!څومره ښکلې مرغۍ ده!افرین ستا په میړانه! کله چې تنبیه اوپوښتنه دواړه مطلوب وي،هلته دپوښتن نښې(؟) سره یوځای لیکل کیږي لکه:دخدای لپاره داڅه حال دی؟!

د ارزو(تمني) لپاره هم راوړل کیږي، لکه: کاشکې!هغه... دامریکا غلام نه وای!

**۷ـ کش یاکرښۍ(ــ)**:دغه کرښه د دوه مهمو جملو او کلمو دتفریق لپاره لیکل کیږي لکه صرف ـ نحوه،معاني بیان اوبدیع ټول ژبني علوم دي.

دغه نښه دشدت له مخې دکامې سره چندان توپیر نلري، په ډېرو ځایونو کې دکامې په ځای لیکل کیږي،خوبیا یې هم شدت دکامې نه ډېر دی؛ لکه: امام شاه ولي الله ـ دهندوستان مشهورعالم ـ پخپل مشهورکتاب "ازالة الخفاء" کې:دخلافت په موضوع دومره جامع اوغوره بحث کړ –چې تراوسه بل عالم او امام نه دی کړی.

هم د سوال اوځواب د دوو جملو لپاره راوړل کیږي، لکه: احمده څه کوې؟ خط لیکم- چاته؟ خپل ورورته.

اوبل دشمېر اوشمېرلي( عدد اومعدود) دبېلولو لپاره هم لیکل کیږي لکه:فعل دزماني له مخې په درې ډوله دی ۱- حال ۲- مستقبل۳- ماضی.

کله کله دکرښې سره دوه ټکي هم استعمالیږي لکه (:-) دغه نښه دتفصیل راوړو لپاره لیکل کیږي، له دې وجې تفصیل نښه هم ورته ویل کیږي،دمثال اوممثل ترمنځ او دبغلي عنوانو راوړو وروسته هم لیکل کیږي

**۸ـ(=)**:دغه دوه کرښې ددوه څیزونو دبرابرۍ اومساوات ښودنې لپاره هم کارول کیږي،لکه: ۲+۲=۴

## دوه قوسونه یا دوه لیندۍ():

ددغو دوو نښو ترمینځ یوه غوره او دپاملرنې وړ جمله یا وینا لیکل کیږي، لکه: زما ورور( محمود) حج ته لاړدی.

همدارنګه دمعترضه جملې دښودنې لپاره هم راوړل کیږي، لکه:زه غواړم راتلونکې اوونۍ له احمد سره(چې زما ښه ملګری دی) جهاد ته لاړشم.

په بل عبارت دلیندیو ترمینځ تشریحي اوفرعي عبارتونه هم لیکل کیږي، یا په بله وینا:په لیندیو کې غیر اصلي تبصره راوړل کیږي

لکه: فلسفه( چې زده کړه يې کټوره ده)ښه مشهور اومهم علم دی.

کله کله دیو شخص دزیږېدو او مړینې نیټه هم پکې لیکل کېږي لکه: احمدشاه بابا(۱۷۲۳م،۱۷۷۲) پاني پت کې مرهټیانوته ستره ماته ورکړېده.

ځیني وخت په لیندیو کې شمېر یاکوم توري ددې لپاره لیکل کېږي، لکه:دمحمود دکور کرایه(۳۰۰۰) افغانۍ ده د دوکان بیه(۱۰۰۰۰) افغانۍ ده.

هم هرکله چې سواليه(پوښتن نښه)دشک اوطنز په توګه لیکل هدف وي، بایدپه لیندیو کې راوړل شي لکه:په ازاده نړۍ(؟) کې میډیا(!) نړیوالو ته دمظلومو خلکو پيغام رسوي(!) یا لکه:خالد جانه ځومره زړه ور (!) یې.

خو دیته باید پام ولرو چې دلیندیو راوړو څخه وړاندې په کومه جمله کې به لیک نښه نه وي راغلې، که دکامې ایښودلو ضرورت هم و؛ بیا هم لازمه ده چې دلیندیو وروسته راوړل شي.

### ۱۰.غبرګې لیندکۍ(( ))

ددغې نښې په مینځ کې دیوټاکلي کتاب عبارت، دیو شخص وینا یا مهمه نظریه راوړل کېږي لکه: رسول الله ﷺ فرمایلي(( علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین))

یا په دې ورځوکې د((مود)) او((میتودود)) کلمې ډېرې استعمالیږي.

### ۱۱.درې ټکي(...)

دانښه هم زیات اهمیت لري، کله چې دیونوم یایوې جملې ځرګندیدل لازمي نه وي، هلته پرلپسي څو پرلپسي ټکي ایښودل کېږي، لکه:ماته دپښتو... معلوم دی.

### ۱۲.درې ستوري(***):

درې ستوري دیوې مقالې یایوې رسالې یایوې برخې ترپای ته رسیدو وروسته ایښودل کېږي، چې زیاتره دچاپ په وخت کې کارول کېږي.

**۱۳ـ نیخکونه**([ ]):په عمومي توګه دغبرګولیندیو دننه دیوبل شخص وینا لیکل وي،یعني هغه وخت چې په غبر ګو لیندیو کې دننه کومه بله وینا راوړل ضروري وي،هلته نیخکونه ایښودل کېږي،البته دغه ډول لکه اشاره چې ورته وشوه، کله کله په مفردو نقلي نښو کې دننه هم راځي لکه: خالد ویل: ابن جریر دتاریخ ښه کتاب لیکلی [ خوزما په نظر دابن کثیر البدایه والنهایه دتاریخ ښه کتاب دی]

### ۱۴ دټینګار نښه(ـــــ):

کله کله لیکوالان په لیکنو کې داسې کلمې، جملې اوفراګرافونه راوړي، چې نسبت نورو کلمو، جملو اوفراګرافونوته یې اهمیت زیات وي، یاغواړي پرځینو مسایلو او عناصرو تاکید وکړي هلته ترې لاندې اوږده کرښه کش کېږي لکه:خبردار! دلته دریدل منع دي ـــــــــــ

## املاء او ليکدود:

دتورو،کلمو،اشارو اوليک نښودليکلوطريقې ته املاءوايي او پښتوپوهان يې ليکدود بولي.

ژبپوهان اتفاق لري، چې هېڅ ژبه دليکلو دطرز اودهغو دنښو له پېژندنې پرته په ښه توګه نشي ليکل کېداى، له دې وجې املائې قواعد او اصول ديوې ژبې د ليک لوست اساس ګڼل کيږي.

په ټولو پرمختللو ژبوکې داملاء او انشا قواعدو يادولو لپاره دپخوانيواشارو او ليکنو پيروي لازمه ګڼل کيږي، که يولفظ دتلفظ له پلوه هرڅومره له مروجې املاء څخه مغايروي،خو په ليکلوکې داملاء او ليکدود د اصولواو قواعدو په مروجه بڼه ليکل کيږي او نه دتلفظ په بڼه...

املاء دافعال باب عربي مصدردى، عربي کې ورسره پاى کې همزه ليکي ، په ځينو نورو ژبو لکه اردو شوه له همزه پرته (املا) ليکل کيږي، خو دپښتو املاء لپاره دعربي ليکونو له دلې دوه ډوله (نسخ اونستعليق) ليکونه ټاکل شوي، په دې سره پښتو "اقرب الى العربى"ده، پښتو پوهان له املاء کلمې سره همزه ليکي، په لغت کې داملاء معنا ده خط ليکل يا رسى غوړول او صطلاح کې دتورو، کلمو، اشارو اوليک نښو ليکلو طريقې ته املاء وايي، يا داملاءنه مراديولفظ دتاکلو قواعدواوضابطو سره موافق ليکل چې په ويلو اولوستلو کې وربانديې تلفظ کول په اسانه او صحيح ډول کېداى شي او دا هغه مهال ممکن دى:

چې کله هر لفظ د هغو مخصوصو تورو په مرسته وليکل شي، کوم چې دهغه دليک لپاره مخصوص دي مثلاً:علم معنا ده "بيرغ"خو دع.ل.م.په ځاى يې په ا.ل.م. ليکل سم ندي.

بله داچې په هره ژبه کې مضمون ليکل؛ ځيني ظاهري اوباطني اداب لري،يا په بله وينا: په هر مضمون يا هره ليکنه کې د ځينو لفظي محاسنو ترڅنګ د ځينو حقيقي او معنوي محاسنو راوړل هم ضروري دي،ليکوال به دا دواړه (لفظي او معنوي) عنصرونه په پام کې نيسي او دپوره کولو کوښښ به يې کوي، ځکه په دې سره دهغه د قلم لاندې ليکنه معياري ګڼل کېداى شي او هم هغه ته ديو تجربه کار قلموال وياړ ور په برخه کوي.

هم داراز د هر،لفظ صحيح ليکل؛ يعنې په هر لفظ کې چې څومره توري راو ړل وي او په کوم ترتيب راوړل پکار وي،په هم هغه بڼه د هرتورى ليکل پکاردي، په دې سره يوه ليکنه بيا داملاءله پلوه سهي ګڼل کېداى شي اوکه څوک د املاء اوليکدود په واحده بڼه توري نه ليکي ، د هغه ليکنه د املاء له پلوه خطاء او ناسمه ده ، يعنې په سمه بڼه دتورو ليکل اوراوړل املاء ده او هره طريقه چې دتورو د راوړو او ليکلو لپاره استعماليږي هغې ته رسم الخط(ليکدود)ويل کيږي،داملاء اوليکدود ترمنځ

معربه بڼه یې رواج موندلی اوس په اصلي بڼه لیکل کېږي لکه: سابون، لال، مرکه، کتره، کتار اونور...

۴ـ دشول مصدر تړول فعلونه دسول( سوختن) مصدر له فعلونو سره دالتباس دمخنیوي په منظورپه (ش) لیکل کېږي لکه: وشو، شوی دی، شوی ؤ، وبه شي،همدارنګه شته اونشته باید په (ش) ولیکل شي، نه په (س) نن سبا ځینې فیسبوکي لیکوال له دغه اصل څخه په ښکاره سرغړونه کولو دشول مصدر فعلونه؛ دسول( سوختن) مصدر دفعلونوپه بڼه په سین( وسو،سوی دی،سوی ؤ،یاسته، نسته) لیکي چې داکار دپښتوژبې د لیکدود اوګرامر د قواعدونه ښکاره سرغړونه ده.

**انشا:**

دمضمون لیکلو لپاره دژبې د قواعدو او انشا (که بشپړه نه وي،دضرورت ترحده) سره بلدتیا ضروري ده،دهرې ژبې دقواعدو او انشا موضوع یوه لویه موضوع ده، چې په باب یې دهرې ژبې ژبپوهانو او وینپوهانو ارزښتمن خدمتونه سرته رسولي،دپښتو ژبې داملاء او انشا په لړ کې که څه هم هغسي چې اړتیا ده کارندی شوی،خو بیاهم ترڅه ځایه دپښتو ادب استادانو او پوهانو یومخ میدان خالي پرې ایښی هم ندی بلکې په اړه یې ګټورې څېړنې اولیکنې کړي دي او دپښتو انشایي قواعدیې په روښان شکل ترتیب او لیکلي دي،چې په دې سره واقعاً هغوئ د ستاینې وړ دي او دپښتوژبې د ځوانو قلموالو لپاره دهغو قواعدو اواصولو یادول ضروري دي، دلته یوائې دیومثال په راوړو اکتفا کوو.

"دی،دي، دې،ده" اونور... شاید دیو و یناوال لپاره دومره ستړي کونکي اوځورونکي نه وي؛ څومره چې دیومضمون لیکوال ځوروي؛دمذکر اومونث ترمنځ، دواحد، تثنیه اوجمع ترمنځ توپیرونو ته دقیق پام لرل شاید یو خطیب او مقرر ته ستونزه ونلري، خو د یو لیکوال اومضمون لیکونکي لپاره دپام وړ ستونزه ده، دهرلیکنې په لیکوال لازمي ده، چې هغه به دالفاظودتذکیر،تانیث ترکیب او مزاج نه خبروي،د معنا لرونکو تورو په کارولو کې دمبتداء،خبر،فعل اوفاعل ترمنځ به دمطابقت له قوانینو هم اګاه وي...

**متضاد اومتقابل الفاظ:**

ځیني الفاظ دمعنی له پلوه متضاد او دیو بل مقابل وي،لکه " ورځ" د"شپې" ضد ده،یا "امیر" د "غریب" ضد دی، دیته متضاد الفاظ ویل کېږي اوځیني الفاظ دیوبل ضدنه؛ دیو بل مقابل وي،هغو ته متقابل الفاظ ویل کېږي،دا دواړه په عظیم الشان قرآن کې زیات استعمال شوي لکه: ثواب و عذاب، جنت و جنهم، وعدو وعید، ترغیب و ترهیب، کافر و مومن، صالح و فاسق، عالم وجا هل داتړول هغه الفاظ دي چې دیوبل سره مقابل دي.

د متضادو او متقابلو الفاظو صحیح اومناسب استعمال لیکنې اومضمون ته ښکلا ور ښښي، په دې اړه لاندې درې اقتباسونه ولولئ او وګورئ چې فاضل ادیب دلیکوالۍ دامهم صنعت په څومره ښه راښکونکې سلیقه کارولی دی:

۱- زموږ په وړاندي دوه لارې دي: "من شاء فلیومن و من شاء فلیکفر"

کفر یا اسلام، شرک یا توحید، صدق یا کذب، حق یا باطل ،هرشخص واک لري، چې هغه ددې دوو نه یوه غوره کړي؟!

۲- مو نږ دې بازارته دنفع په سودا پسې نه؛ بلکې په زیان اوتاوان پسې راغلي یو!له چانه شابس او آفرین... نه؛بلکې نفرت او رټل غواړو، دعیش اولذت ګلونه، نه؛بلکې د اضطراب اوزحمت ازغي لټوو! د دنیا د مال اومتاع ... د پاره نه ؛ بلکې د خپل تن قربانولو پسې را وتلي یو!

په لا ندیني اقتبا س کې هم وګورئ چې دتضاد او تقابل هنر په څومره ښه او راښکونکې ښه کارول شوی:

## دتضاد اوتقابل کمال:

په منځنیوپیړیو(قرون وسطی) کې صلیبي جنګونو اروپا او منځنی ختیځ دیوبل په وړاندې ودرول، اروپا هغه مهال دمسیحي ذهن استازې وه او منځنی ختیځ داسلامي ذهن استازیتوب کا و او د دواړو متقابل حالت له وجې د هغو دواړو متضاد اړخونه هم څرګند وو اروپا دمذهبي جنون او جوش علمبرداره وه او په ختیځ کې مسلمانان دعلم او دانش علمبرداران وو اروپا ددعاوو په وسله جنګیده او مسلمانانو داور او وسپنې په وسلو جنګیدل، داروپا باور یوائې په خدایي مرستو لاره او د مسلمانانو هم په خدای او هم دخدای په پیدا کړیو وسایلو باور درلود؛ یو لوری یوائې دروحاني قوت معتقد و او بل دروحاني اومادي دواړو معتقد و؛ لومړي دمعجزو ظهور ته انتظار کاو او دوهم بیا د خپل عمل د نتایجو ظهور ته...؛معجزې ښکاره نشوې؛ خو دعمل نتایج څرګند شول، دفتحې اوبري پریکړه یې وکړه؛ د "ژواین ویل" سرتیري په یاداښتونو کې هم دا متضاد او متقابل منظر انځور شوی، کله چې مصري فوځ له منجنیقونو څخه د اورلمبه لرونکې مردکې ویشتل ، د فرانسویانو لاسونوکې هم هغه پخوانۍ او زړې وسلې وې او په وړاندې یې بې وسه شول "ژوا ین ویل" لیکي:

یوه شپه مونږ د ښار هغو پوستوته چې دسیند په غاړه وې،د پهرې لپاره لاړو، نو مونږ ناڅاپه ولیدل چې مسلمانانو یو انجن ورته څېر چې دوئ منجنیق باله راوړو اوموږ ته مخامخ یې نصب کړ، لږه شیبه وروسته یې د هغه نه د اور لمبه لرونکو مردکیو باران پیل

کړ، ددې حالت په لیدو زمونږ صاحب منصب ماته نژدې راغی، هغه ویل:

اوس مونږ د بد حالت سره مخ یو! که دا مور چلې پرېږدو؛ مونږ به پکې یو او مسلمانان به ورته اورونه واچوي چې مونږ به هم دلته خاورې اېرې شو!اوکه خالي کوو یې ، دا به زمونږ لپاره شرمونکې وي، څکه مونږ دلته پهرې اوڅارته گومارل شوي یو، په دې وخت کې دخدای پرته بل څوک مونږ نشي ژغورلی،زما سلا داده چې هرکله مسلمانان داورلمبه لرونکی(مردکی) ز مونږ په لور راتوغوي، مونږ به خدای ته پریوزو! اوله خپل نجات ښښونکي څخه به دنجات دعاء غواړو!! څوهغه مونږسره په دې مصیبت کې مرسته وکړي،مونږ ټولو هم داسې وکړل،هرکله به چې د مسلمانانو لخوا د اور لمبه لرونکي مردکي دراتلو غږ پورته کېد، مونږ ټول به په زنگنونو ټېتیدو اوپه دعاء به مشغول وو.

داورلمبه لرونکی مردکی چې دمنجنیق نه را وت دنېزې اومره اوږده لکۍ به یې وه ؛ څه مهال چې بره په هوا کې راته، ورسره دو مره ډاروونکی غږ به و لکه چې تندر را پریوت؛ شکل یې اتشي اژدها ته ورته و چې په هواکې به یې الوتنې کولې؛ رڼا یې دومره تېزه وه، چې زمونږ شاوخوا علاقه به یې داسې سپینه رڼا کړه لکه چې ورځ راختلې وي؛ دهر غږ په اوریدو به زمونږ ولي صفت پاچا له خپلې بسترې را پورته شو او په ژړه،ژړه کې به یې زمونږ نجات ښښونکي ته زارۍ اوفریاد کاو؛ مهربانه!زما د خلکو ساتنه وکړې! زه باور لرم چې زمونږ دپاچا هغو دعاگانو ضرور مونږ ته فایده رسوله.

دفایدې باورله خوش باورۍ او وهم پرته بل څه نه و؛ با الاخر هېڅ دعاء گټه ورنکړه، د اورلمبو او شغلو دهغوئ هغه ټولې مورچلې وسیزلې او خاورې اوایرې یې وگرځولې، داحال ددیارلسمې مسیحي پیړۍ و او څو پیړۍ وروسته چې بیا کله اروپا او ختیځ سره مقابلې ته ووتل، هغه مهال حالت یومخ او ښتی و، البته د دواړو لوریو متضاد خویونه بیا ښکاره وو، څنگه چې د پخواني صلیبي جنگ پر مهال وو، خو دومره بدلون راغلی و، هلته په کوم ذهني ځای اروپا ولاړه وه، اوس پرې مسلمانان ولاړوو او په هغه ځای چې مسلمانان وو، هغه ته اروپایان ور رسیدلي وو، داتلسمې پیړۍ په پای کې چې کله نپولین په مصر حمله وکړه،نو"مرادبک" دجامعه ازهر علماء راغونډ کړل او له هغوئ سره یې مشوره و کړه، چې اوس څه کول پکاردي؟د ازهر علماوو په اتفاق سره هغه ته رایه ورکړه، چې په جامعه ازهر کې دبخاري شریف ختم شروع کول پکاردي؛ دا ددښمن دهلاکېدو لپاره یوه مجربه نسخه ده؛ هم داسې وشول،دبخاري شریف ختم پای ته نه ورسیدلی، چې د اهرام په جگړه کې دمصري حکومت تخته نسکوره شوه، شیخ "عبدالرحمان

الجبرتـــی" پخپـــل قلـــم دهغـــه وخـــت د سترګولیدلي حالـت کـوم انځورکښلی،هغه ډېر دردونکـی او دعبـرت ډک دی اوبیـا دنولسـمې پیړۍ په پیل کې چې کله روسانو بخـارا کلابنـد کړ ه، دبخارا د امیـر پـه حکـم پـه ټولـو مدرسـو اومسجدونو کې "ختم خواجګان" پیـل شـو، لـه مقابل لوري نه روسانو دخپلو توپونو اوټانګونو په بریـدونو د بخـارا د ښـار د دیـوالي دفـاع کرښـې نړولې ،خلک دختم خواجګان د حلقونـه و پورتـه شوي او په دعاوو مشغول وو، چې بالا خر هـم هغه څه پېښ شول،کوم چې په داسې مقابله کې پېښـیدونکي وو، دا سـمه ده چـې دعـاء فایـده رسوي...! خو هغه چاته ... چې هغـوی دپـولادو پشان قوي عزم او کلک همت ولـري...! هغـو بې همته اوبزدلو خلکوته فایده نه رسـوي؛ چې هغوی دعمل د نه کولو لپاره پلمه او د قواوو د تعطل لپاره دعـاء وسـیله او حیلـه ګرځـوي...( ازاد، مولانا ابوالکلام، غبار خاطر)

اوس غـور وکـړئ! کـه ددي عبـارتونو څخـه دتضـاد اوتقابـل حسـن وتـروړل شـي،څه شـی بـه پاتې شي؟

## مترادف اومتقارب الفاظ:

هغه الفاظ چې سره یـوه معنـا ولـري، هغـو ته مترادف یعنې دیوبل پوره کـونکي الفـاظ ویـل کیږي اوهغه الفاظ چې دیوبل سره په معنـی کـې قریـب ( قریـب المعنـی) وي هغـو تـه متقـارب الفاظ ویل کیږي، لکه: په ظلم ، ستم ، خپلواکې او ازادۍ کـې تـرادف دی، پـه متحـد،منظم کـې تقارب دی، دوړاندیني صنعت پشان دترادف او تقارب صنعت ته په لیکنه یا مضمون کې پام درلودل او په مناسب ځایونو کې یې راوړل او کارول دلیکوال دلیکنـې قـوت او ښـکلا دوه واره زیاتوي اوپکې تازه ګي رامینځته کوي.

## تشبیهات:

په کلام کې دفصاحت اوبلاغـت پیـدا کولـو او دحسن زیاتولو ا د یو راښکونکي کلام لپاره ښه موزون اومناسب تشبیهات راوړل دمعیاري لیکنې یا مضمون کلام ته حسن ورکوي ښکاره ده تشبیه درې ارکان لري، (۱) مشبه: هغه څېز چې دهغه تشبیه ورکړای شي(۲) مشبه بـه: هغـه څېز چې دهغه سره تشبیه ورکړای شـي (۳) وجـه دتشبیه:دمشبه اومشبه به ترمنځ هغه ګډ وصف چې دهغه په اساس تشبیه رامینځته شـوي لکـه: احمد لکه زمری دی،په دې جمله کې احمد مشـبه دی،زمـری مشـبه بـه دی اوزړورتیـا یـې دتشـبیه وجه ده.

په پښتو کې دتشـبیه ادات دوه دي (لکـه ــ غونـدې) خـو لانـدې یـو شـمېر کلمـې هـم ددوه څېزونو یا معناوو ترمنځ دورته والي(تشبیه) لپاره استعمالیږي:

پـه څېر،پشـان، پـه رنـګ، پـه دود، دا راز، داخپـــل، داډول، دارنـــګ، لکـــه چې،څنګـــه چې،دغسې، هغسې، داسې، هسې، شانته، ورتـه، ته به وایې. اونور...

ځو مشهور تشبيهات په لاندې ډول دي

داسمان پشان لوړ، دايوب غوندې صابر، دعمر غوندې عادل، دتيږې په څېر سخت، محمود غزنوي شانته فاتح، احمد شا ابدالي غوندې افغان،دسپوږمۍ په څېر ښايسته، دفرهاد په څېر مين،دفرعون پشان مغرور، دنمرود غوندې ظالم، دخره په څېر ناپوهه، دسپوږمۍ غوندې ښكلى او كله كله" غوندې" ادات د مشبه به په پاى كې هم راځي: لكه: فرهاد دجليل غوندې دى.

## تلميحات:

دكومې تاريخې، سياسي، ديني، ياافسانوي پېښې لور ته په لنډو الفاظو كې اشاره كولو ته تلميح ويل كېږي. لكه په لاندې بيتونو كې:

دنمرود دظلم سره سره دوزخونه
دپتنګ خوړلن ايرې ته نه رسيږي
(ناګار)

دنمرود دظلم سره سره دوزخونه .... تلميح ده، دحضرت ابراهيم (عليه السلام) د واقعې په لور اشاره ده؛ په دې تلميح سره دابرهيم (عليه السلام) ټوله واقعه ذهن ته رازي او تازه كېږي.

يا:

په دفتر دي كه هم اور بل شي ناګاره!
دميوند يوې مسرې ته نه رسېږي

دميوندي يوې مسرې ته .... تلميح ده پكې دميوند د تاريخي جګړې اوپه هغه كې د شهيدې ناوكۍ (ملالۍ) لاندې مشهورې ټپې ته اشاره ده:

كه په ميوند كې شهيد نه شوې
خدايږو لاليه! بې ننګۍ ته يې ساتينه

يا لكه:

كنعاني مينې كچكول په لاس كې راكړ
مسافره شوم دمصر په كوڅو
(پروين ملالۍ)

كنعاني مينه... تلميح ده ديوسف (عليه السلام) حسن، دهغه دورونو لخوا دكنعان په كوهي كې د هغه غورځولو واقعې او بياد مصر په بازاركې ديوسف(عليه السلام) دپلورلو او به هغه باندې زليخا دمينتوب تر داستان ټول رانغاړي او لوستونكي ذهن ته يې را ولي .

غرض داچې دكومې مهمې واقعې، يا علمي اصطلاح، يا دعظيم الشان قرآن كوم ايت او درسول الله (ﷺ) كوم حديث ته په نظم او نثر دواړو كې اشاره كولو ته تلميح وايي. په دې اړه د يو فاضل اديب الفاظ دي:

تلميحات څه دي؟ زمونږ دقوم دقدمونو نښې دي؛چې په هغو باندې په قدم ايښودو مونږ د خپلو پلرونو او نيكونو اندونو، رسمونو، دودونو او فكرونو ته لار مومو!

## ځو مشهور تلميحات

توپان نوح:نوح(عليه السلام) د خپل قوم اصلاح غوښته ، خو هغه په لار ه نشو، بالا خر تنګ

راغی، ورته ښېرې او ازار يې وکړ، توپان راغی او په هغه کې هغه قوم ټول غرق شو، داتلميح ده د هغه واقعې لور ته اشاره ده.

**کوه طور**:

د راز او نيازه سره ډېرې کيسې سترې شولي
دې کوه طور ته لاتر اوسه څوک ختلي ندي
(جهانی)

دې کوه طور ته .... تلميح ده،هغه دسينا غر ته اشاره ده کوم ته به چې موسی(عليه‌السلام) دالله (جل‌جلاله) سره خبرو ته ورته.

قارون خزانه:هغه شتمن سړي ته اشاره ده چې هغه قارون نوميده اودموسي (عليه‌السلام) دقوم نه و،دزيات مال دولت څښتن و، خو دخدای نه منکر او ظالم و، موسی(عليه‌السلام) ورته نصحيت وکړ،خو بيا هم دظلم نه لاس په سرنشو، اخر الله(جل‌جلاله) دخزانو سره يوځای په زمکه کې خښ کړ.

دجمشيد جام: تلميح ده، پکې دجمشيد هغې پيالې ته اشاره ده، چې پکې به هغه دعالم اودنيا کوايف مشاهده کول، او س پکې په تخفيف کولو جامِ جم کارول کېږي.

بزاخفش:دنحوي يولوی امام اوعالم اخفش نوميده، هغه دتدريس دتمرين لپاره يوه ووزه ساتلې وه، نوموړي به چې هرڅه يادول، هغه به يې هغې ته هم اورول، کله به چې هغې سر وښوراوه، ده به حس کړه، چې ګواکې درس يې ښه ياد شو،داتلميح دهغه چا لپاره کارول کېږي چې هغه په درس باندې دپوهېدو پرته سر ښوروي...

فرهاد به غر په همت ونړوي.

يا دشودو نهر روانول:فرهاد يوسنګ تراش و، هغه دشيرينۍ په نوم يو پېغله باندې عاشق شو،هغې فرهادته وويل:چې ته! غر څېري کړه اوپکې دشودو نهر روان کړه، بيا به زه له تاسره واده وکړم، هغه دشيريني لپاره دي سخت کارته هم ملا وتړله،آخر يې غر څېرې کړ،خو چا ورته دروغ وويل: چې شيرينه مړه شوي؛ په دې سره يې خپل سر په مارتول وواهه اومړشو.

دغه ډول تلميحات په نثر او شعرکې استعمالول دليکوال اوشاعر دعلمي قوت ښکارندوی کړي اوپه مرسته يې هغه کولی شي چې ډېر اوږده مفاهيم په لنډو الفاظوکې ځای کړای شي او هم دهغه دمطالعې وسعت جوتوي په نړۍکې ټول منلي ليکوالان اوقلموال پخپلو ليکنو کې د تاريخي، سياسي، ادبي، ديني او افسانوي مفاهيمو په لړکې د دغه ډول تلميحاتو اوکلماتونه کار اخلي

نوربيا...

**يادونه** : اخذليکونه دليکنې په پای کې راوړل کېږي

# په نني نړۍ کې د رسنیو اهمیت

## او د مسلمانو قلموالو مسئولیت !

حسن نروی

د سیدنا حذیفه رضی الله څخه روایت دی چې رسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم وفریـل :مـاسره ستاسوپه باره کې ماته ترټولو زیاته وېره ددې خبرې ده چې تاسوبه پـه خپـل علم هغـه څـه تـه تـر جیح ورکـړئ کـوم چـې وینـئ ؛ تاسـو بـه بـې لارې شـئ اوتاسوبه خبر هم نه یئ (ابن ابي شیبه )

داحـدیث چـې مـوږ بیـا بیـا ولولـو اوپکـې فکروکړونوراته به جوته شي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم چې پدې حدیث کې کومه وړاند وینه کړیده هغه اوس موږ په انساني ټولنې کې پـه عملي اوژوندي شکل کې وینو ځکه چې نني خلک پـه هغـه څه چې پخپله پرې پـوه وي لـه پامـه یـې غورځـوي اوهغه څه چـې پـه نړیوالورسنیوکې نشرکېږي زیـات داعتباروړیې بولي نورښتیاده چې داد دمیډیا یا رسنیو دور دی؛ میډیا ته په ډېرې لویې سترګې کتل کېږي ؛ مطبوعات یا رسنۍ به چې د دولت څلورمه ستن یا رکن بلل کېدلو اووېل کېدل به چې دا د دولت د ۳ګونو نـورو قـوو یـانې قضائیه قـوې مقننـه قـوې او اجرائیه قوې تر منځ ربط ساتي ؛ ولس ددې ادارو د فعالیت نه خبروي او د ولس ستونزې او مشکلات د دولت تر غوږو رسوي ،داټولې اوس زړې خبرې دي؛ په عمل کې اوس خبره له دې ډېره وراخوا ده.

هـو! د یوهېـواد دمطبوعـاتو یـا رسنیواصـلي حیثیت همدا دی چې د دولت څلورمه ستن یا رکـن دې وي اودنـده یـې همـدا ده چـې بایـد د دولـت د۳ ګونو نورو قوو تر منځ ربط وساتي ؛ ولـس ددې ادارو د فعالیت نه خبرکړي او د ولس ستونزې او مشکلات د دولت تر غوږو رسوي خـواوس عمـلا داسـې نـده ؛ اوس برقـي او چـاپي خپرونودپرمختـګ تـول پراوونـه وهلي اودترقۍ عروج تـه رسېدلي دي همـدې رسنیو نړۍ ته دیو کلي حیثیت وربښلی دی او دنړۍ په هـر ګوډ کې چې کومه پېښه رامنځته کېږي پـه بـل ګـوډ کې ترې نه یواځې دا چې هر څوک خبرېږي بلکې د انټرنیټ او تلویزونونو په پردو یې څو دقیقې پس پـه

خپلوسترگوويني هم ،او دا چې د همدې رسنيو له لارې د نړۍ د هر قنج وکنار د حالاتو نه په ډېرې اسانۍ هرڅوک ځان خبرولای شي نوځکه وايو چې اوس خبره د دولتونو د څلورم رکن نه وړاندې نړيوالتوب ته تللې ده ؛اهميت يې نړيوال دی او اغېزې يې هم نړيوالې دی.

دخلکوترغوږو خبرونه رسول اوخلک دنړۍ دحالاتو نه خبرول درسنيوو ستره ځانگه وه خو اوس دا ځانگه اصل هدف ندی بلکې دهدف دترلاسه کولولپاره دآلې په توگه کارول کېږي ؛ له دې لارې رسنۍ شهرت اومقبوليت ترلاسه کوي اوطبعي ده چې مشهورې اومقبولې رسنۍ خپل هدف ته په اسانه رسېدای شي همدا لامل دی چې نن رسنۍ نه يواځې دمافی الضمير داظهاربلکه دخلکوژبې اوذهنونه دخپل مافی الضمير تابع گرځول اود اهدافو او مقاصدو د تر لاسه کولو لپاره تر ټولو ستره ، مهمه او کاميابه وسيله کڼل کېږي .

دخلکوپه فکرونواونظرياتو داغېزوخپرولو ؛ نوروته دخپلوافکارودانتقالولو اوپه نتيجه کې يې خپل همفکره گرځولو لپاره کاميابه لار ده نوځکه يې نړيوال سترطاقتونه دخپلې برلاسۍ لپاره دکاميابې وسلې په توگه کاروي ؛ امريکا چې پدې مادي نړۍ کې دامهال په نظامي ډگرکې ترټولو سترځواک دی نوبې له شکه چې رسنۍ يې هم په نړۍ کې ترټولوځواکمنې رسنۍ دي اوسره له دې چې دلته ديهودوشمېر ډېرکم دی خو همدوۍ ددې هېواد په

هغه رسنيوو قابض دي کومې رسنۍ چې ددې هېواد لپاره په سياسي ، اقتصادي اوټولنيزوډگرونوکې پاليسي اوخط مشي ټاکي ؛ دډېرې حيرانتياوړ خبره ده چې ددې هېواد دفلم ، چاپي خپرونوتلويزونونو، راديوگانو ، کېبل ، ايف ايم څومره سترشرکتونه دي ټول ديهودو ملکيت دی ؛ والټ ډزني نومي دنړۍ ترټولوسترميډيا شرکت ديهودو ملکيت دی ؛ سی این این ، سی بي ايس ، ای بي سي او اين بي ايس دنړۍ دا ستر تلويزونونه هم ديهودو دي اوواشنگټن پوسټ ،نيويارک ټائمز اووال سټريټ جورنال چې دنړۍ ترټولومعتبر اخبارونه گڼل کېږي اوترټولوزيات خپرېږي دا ۳واړه هم ديهودو دي ؛ همدا درې واړه اخبارونه دي چې نه يواځې دامريکا بلکې دنړۍ په سطحه پرېکړې کوي چې ښه څه دي اوبدڅه ؟ څه کول پکار دي اوڅه نه ؟ دامريکا بهرنۍ اودننۍ پاليسي دهمدې درې واړو اخبارونوتابع ده اوسترې پرېکړې هم اصلاًهمدا درې واړه اخبارونه کوي ؛ که يوه خبره سل په سلوکې له حقيقت نه لرې وي خو چې دا درې واړه اخبارونه يې حقيقت وگڼي څوځلې پکې ښکته پورته شي اوپه اړه يې مقالې راشي امريکايې ولس يې حقيقت وگڼي نودولت يې هم په اړه پرېکړه وکړي ؛ دا درې واړه اخبارونه چې ووايې اسلامي امارت دامريکا په شمول ټولې نړۍ ته ډېر ستر خطر دی اوبياپدې اړه په مقالو کې څه خودساخته شواهد اودلايل هم وړاندې کړي ؛ امريکايې ولس دړندو ،کڼو په څېر ووايې هوهمداسې ده نو دولت پرېکړه وکړي چې بايد

اسلامي امارت له منځه یوړل شي نوحمله پرې پکارده ؛ دنړۍ نورې رسنۍ بیا دهمدوئ تقلید کوي اودهمدوئ له لورې په خپرو شویو موا دوشخوند وهي نوځکه ویل کېږي چې دنړۍ په رسنیوو دیهودو قبضه ده ؛ددې ترځنګ چې په ډېرى چالاکۍ ،فریب ،چل اوهنر یهودوخپلې رسنۍ دنړیوالو په فکرونوکې ترټولومعیاري ګرځولې دي ترڅویې دنړۍ نورې رسنۍ تقلید وکړي ترځنګ یې د پیسو له لارې هم دنړۍ مطبوعات خپل تابع ګرځولي اوپیسې هم خوشی نه ورکوي بلکې ددې پیسو له لارې بېرته درسنیو نه مادي ګټې هم ترلاسه کوي هغه داسې چې دنړۍ ملټي نیشنل شرکتونه کابو ټول دیهودو دي ؛ ددې شرکتونوپه سونوزره اشتهارات دنړۍ مطبوعات دډېروسترو معاوضو په مقابل کې خپروي چې ورسره ددې شرکتونومالونه ښه شهرت مومي اوښه مارکیټ په نړۍ کې پیداکوي ؛ داملټي نیشنل شرکتونه خپل اشتهارات یواځې هغورسنیو ته ورکوي کومې چې ددوئ له لورې دورکړل شوې پالیسۍ سره سم نشرات کوي ، هغه پالیسي- چې دنړۍ دمطبوعاتو پالیسي یې بولي اودبیان ازادۍ ته ژمنتیا یې ترټولو مهم اصل دی نود کوم شخص ، ادارې ، ګوند بلکې د یو هېواد پوره ولس د قبولیت معراج ته رسول اود مقبولو اشخاصو ، ادارو ګوندونو او ولسونو څېرې نړۍ ته منفورې وړاندې کول ؛ په شپو شپو کې د ګیدړانو نه اتلان او د اتلانو نه ګیدړان جوړول هم دبیان ازادي ده اود فحشۍ خپرول ؛ دانسانانوترمنځ نفرت ، دښمنیو اوجنګونو ته لمن وهل او اشخاصو ، ډلو، ګوندونو ، ولسونو، کلتورونواوحتی مذهبونوته سپکاوی هم دبیان آزادي ده چې دا هرڅه اوس زموږ دهېواد په شمول داسلامي هېوادونوپه نشراتو کې شتون لري ؛ څو ورځې دمخه مې یوه کوچنۍ ویډیو ولیدله چې پکې دجورنالستانو په جامه کې دیوې مېرمنې په شمول پنځه یاشپږلنډغر په چوکیوو ناست دي ، دجهاد پر ضد لګیادي خبره کوي په داسې انداز چې دجنت اوپکې دحوروپه شمول دشتونعمتونو نه نه یواځې داچې انکارکوي اودا خیالي دنیا ګڼي بلکې منونکي یې لېونیان ګڼي اوورپورې خنداګانې کوي .

باید داومنو چې دنړۍ په رسنیوو دیهودوداقبضه خوشې نده راغلې بلکې دا اوږدو اومسلسلوهڅونتیجه ده؛ دتاریخ هرطالب پدې پوهېږي چې دجورنالیزم ، صحافت ،میډیا اوماس کمیونیکیشن اصطلاحات که څه هم ډېرې وروستنۍ دي خوپه مختلفو شکلونو اوصورتونوکې ابلاغ اودابلاغ ذرائع اوسائل ډېر پخواني بلکې دانسان دپیدایښت سره ملګري اواهمیت نه برخمن دي ؛ یهود چې دخپلواهدافو لپاره اوږده پلانونه جوړول ددوئ زوړ عادت دی اوهمدایې موخوته درسېدلوراز دی ، په ۱۸۹۷ کې دسوزرلینډ په بال نومي ښار کې دنړۍ دګوډ ګوډ نه راغلي ددوئ ۳ سوه ترټولوسرکرده پوهان دهرټزل په قیادت کې ددې لپاره سره کېناستل چې کوم داسې اقدامات وشي چې په نتیجه کې یې ظاهري واکمنان نور خو حقیقي

واکمنان موږ شو؛ داسې وکمنان چې دنړۍ هره ستره پرېکړه زموږ دخوښې سره سمه کېږي ؛ پر نړۍ دخپل حاکمیت راوستلوپه موخه دې اوږدې ناستې کې چې دټولوشریکوالو په اتفاق کوم پروتوکول رامنځته شو هغه په ۱۹ مادومشتمل وچې پکې دګڼو نورو څیزونو ترڅنګ دنړۍ پر رسنیوو دقبضې راوستلو ډېر تاکید شوی و؛ پکې راغلي دي چې موږ به دمېډیا په سرکش آس سپرېږو اوواګې به یې په خپل لاس کې نیسو؛ ددښمن په لاس کې به داسې یوداعتبار وړ اخبار نه پرېږدو چې پرمټ یې خپله رایه په اغېزمنه توګه وړاندې کړای شي اونه به یې دې ته پرېږدو چې زموږ له اجازې پرته کوم لوی خبرخپورکړي ؛ موږبه په نړۍ کې دداسې قوانینو دنفاذ لپاره هڅې وکړوچې له مخې به یې زموږله اجازې پرته څوک پخپل سر څه نه شي چاپ کولای ؛ زموږپه لاس کې به داسې اخبارونه اومجلې وي چې دولس ترڅنګ دمختلفوډلو اوګوندونود تائید اوحمایت نه برخمن وي ؛ داګوندونه دجمهوریت داعیان وي اوکه دانقلاب حامیان ؛ موږ به راتلونکي کې دداسې اخبارونواو مجلو سرپرستي هم کوو چې انتشار ، بې لاریتوب ،جنسي- اواخلاقي ګډوډي خپروي اوداستبدادي دولتونو اومطلق العنان حاکمانو حمایت کوي ؛ خبرونه به په داسې طریقې خپرووچې دولتونه او ولسونه دواړه یې قبلولو مه اړ وي ؛ موږ به بد کردارو اوبداخلاقو لیکوالانو ، مدیرانو اونمایندکانو ته حوصلې ورکوو او څارنه به یې هم کوو ؛ موږ چې دنړۍ کوم تصویر وړاندې کوو نونړیوال باید ټوله نړۍ په همدې تصویر کې وګوري.

دنړۍ په رسنیو چې مخامخ یابالواسطه دیهودو قبضه ده نونه یوازې دا چې دنړۍ رسنۍ د همدوئ د شومواهدافو د لاسته راوړلو لپاره په ډېر ناوړه ډول کارول کېږي بلکې دیهودانوپه نوم داملت چې تل نوروته په شررسولو کې خپل خیر ویني نو په نړیواله سطحه اوس له رسنیوډېر لوی شرخپرېږي اوبله داچې دیهودوچې کوم فکرو هغه فکر اوس ټول لویدیځ ته منتقل شویدی؛ لویدیځ چې په سر کې یې امریکا ده پر ټولې نړۍ خپله باداري ؛ د ټولې نړۍ په وسایلو خپله قبضه ؛او د نورې ټولې نړۍ خلک خپل ذهني غلامان کول غواړي چې بدبختانه دې ټولو هیلو ته د رسېدو یوازینۍ لار دوئ پر نړۍ د خپل غربي کلتور مسلط کول ګڼي او د دې لارې یوازینی خنډ حقیقی اسلام ؛ ریښتوني مسلمانان؛ په نړۍ کې د اسلام سریع اشاعت ؛داسلامي فکروده ؛ اسلامي تهذیب و تمدن ؛ اسلامي ټولنیز نظام او اسلامي حاکمیت بولي نو ځکه یې چې د دې ټولو پر ضد پراخه عسکري جنګ پیل کړی نوترڅنګ یې د رسنیو په وساطت ډېر وسیع او خطرناک تبلیغاتي جنګ هم روان ساتلی دی ؛ دغه تاړاکګر دپر مخ تللې او عصری ټیکنالوژۍ پر مټ زموږ سیمې او هېوادونه قبضه کوي خو د رسنیو د تبلیغاتو له لارې مود خلکو د زړونو ، تمدن ، تهذیب ، قومي اقدارو او کلتور د مسخ کولو هڅی کوي ، او د همدې رسنیو د

زهرجنو تبليغاتو له لارې مود نوو نسلونو د ذهنونو او د دماغو د مفلوج کولو او په فکري لحاظ يې د غلام جوړولو کوششونه کوي ، ځکه چې رسنۍ د مافی الضميرد اظهارنه بلکې د رسنيو د مافی الضمير سره د خلکو د ذهنونو او فکرونو د برابرولو يواځنۍ کامیابه او مؤثره وسيله ده ؛ د اسلام او مسلمانانو پر ضد داعلان شوی صليبي جنگ په لړ کې چې امريکا او متحدين يې په هر اسلامي هېواد يرغل کوي لومړی يې پر ضد دومره منفي تبليغات وکړي چې کله پرې فوځي يرغل کېږي نو دا يرغل هر څوک پر ځای عمل بولي او په بهر نړۍ کې يو هېواد يا ولس دا ناروا مسلط شوی جنگ نه گڼي .

موږ بيا وينوچې ديرغل پرمهال امريکا او نورلويديځ د کمزورو او مظلومو انسانانو پر ضد ډېر بې دريغه طاقت کاروي ؛ د خطرناکو وسلو پرمټ عامه وژنې کوي ؛ عام المنفعه تاسيسات له منځه وړي ؛اباد کورونه په کنډوالو بدلوي ؛ گڼ شمېر بې گناه انسانان د زندانونو د تورو تمبو شاته غورځوي خو دنړيوالو رسنيو کمال دی چې سره ددې ستر ظلم او وحشت دا ظالمان سپين بازان وي او دا مظلوم ، مقهور او مجبوره وگړي ظالمان جابران او تروروستان گڼلی شي .

د ۱۱ ستمبر نه پس لويديځ د رسنيو مؤثر کولو او تقويه کولو ته ډېره زياته توجه کړيده او پدې لار کې زښت زيات مصارف کوي ؛ د وسله وال جنگ تر څنگ تبليغاتي جنگ هم اوس مستقله بڼه غوره کړيده او دايقيني خبره ده چې يرغلگرو دمسلمانانوسره په روانې مقابلې کې د وسله وال جنگ بريا ليتوب او شکست دهمدې مطبوعاتي جنگ دبرياليتوب او شکست سره تړلی دی ، ځکه چې جنگونه يواځې په زياتو پيسو ،ډېرو وسلو او وسايلو نه گټل کېږي بلکه جنگونه اصلاً د ولسونو او جنگيالو په لوړ مورال ،نه ستړی کېدونکې حوصلې او دينی احساس گټل کېږي ، او گټل يې هغه مهال لا پسې يقينې کېږي کله چې مقابل لورې مورال وبايلي ځکه خوپه غربي رسنيو کې شپه او ورځ ددې لپاره تبليغات روان دي چې د مسلمانانو حوصلې ماتې شي ، مورال يې وغورځېږي په هر ډگر کې ماتې ومني او بر عکس غربي ولسونه او جنگيالي مورال ونه بايلي ، حوصلې يې ماتی نه شي او ژرماتې خوړلو ته تيار نه شي ؛ دابيا بيله خبره ده چې پدې هڅو کې دوئ ته هغه برياليتوب نه ورپه برخه کېږي دکوم چې تمه کوي او سره ددې زهر جنو تبليغاتو ، د کاميابۍ د سترو دعوو او مسلمانانو ته د ماتې ورکولو د لويولاپو هم د مسلمانو شازلمو مورال د هندوکش له غره نه لوړ او د غرب د ولسونو او جنگيالو مورال د ټيټوالي په هغه حدودو کې دی چې شايد لاندی به ترې بله مرتبه نه وی .

موږ بايد داهم ومنوچې په نړيوالورسنيووکې چې داسلام اومسلمانانو پرضد کوم زهرجن تبليغات روان دي له امله يې داسلام او مسلمانانو دلوړو اخلاقو ، مثبت سياست ، ټولنېزو مثبتو انقلابي بدلونونو، بشري همدرديو، تهذيب ، ثقافت ، تمدن او صالحه افکارونه

نه یواځې دا چې نړۍ بې خبره او محرومه پاتی ده بلکې د نړیوالو افکار داسلام اومسلمانانوپه اړه بیخي د حقیقت معکوس ګرځېدلي دي نو ځکه د مسلمانانو د خپلو رسنیو سره دا هیلې تړل کېدای شي چې د اسلامي عالي اخلاقو ، سیاسی ، تهذیبی او ثقافتی اقدارو او خوبیا نو سم اشاعت او نګراني به وکړی شي چې د اسلام اومسلمانانوپر ضد د تبلیغاتو غاښ ماتونکی جواب وګرځي .

داهم باید له یاده ونه باسوچې نړیوالې رسنۍ یواځې په کفري نړۍ کې داسلام اومسلمانانو دبدنامولو اوداسلام داشاعت دمخنیوي لپاره نه کارول کېږي بلکې زموږ په اسلامي نړۍ کې دمسلمانانوپه ټولنیز ژوندهم اوس د مطبوعاتو اغېزې ډېرې جورې دي ، په اسلامي نړۍ کې د فحاشۍ په خپرولو او د اسلام د عملی ، فکري ، تهذیبي او لوړ اخلاقي تشخص نه د مسلمانو ځوانانو د لرې کولو لپاره غربې میډیا شپه او ورځ پر ځان یوه کړیده ؛ چې ددې دجالي پروګرامونو مخه هم یواځې د مسلمانانو خپلې رسنۍ نیولی شي .

د نړۍ په مختلفو برخو کې د کفارو یاد هغوئ د لاسپوڅو دیکتاتورانو له لورې پر مسلمانانو ډېر ستر ظلمونه او وحشتو نه روان دي خو نړیوالې رسنۍ ددې مظلومو مسلمانانو په حالت سترګې پټوي او د ظلم او وحشت کوم خبر او حالت چې نشي پټېدای هغه د یو عام خبر په صورت کې وړاندې او پر حقیقی صورت یې پردې را اچوي نو په داسی حالت کې د مسلمانانو په لاس کې د خپلو داسی رسنیو اړتیا ده چې لږ ترلږه ددې مظلومو مسلمانانو دمظلومیت غږپورته؛ داصل حالت نه یې نړۍ خبره او د ظالمانو حقیقي وحشي- څېره نړۍ ته ښکاره کړي.

د اسلام او مسلمانانو د دښمنانو او د هغوئ د فکري غلامانو له لورې پر رسنیو اوسنۍ قبضې باندې یواځې غم او افسوس ښکاره کول او ډګر اغیارو ته پرېښودل د مسئلی حل ندی بلکې پدې حساس وخت کې ددې خبرې ډېره زیاته اړتیا لیدل کېږي چې ذی استعداد ټول مسلمانان درد او قبول خود ساخته معیارونو ته شا کړي ؛ مادي ګټې ، عزت او شهرت له نظرونو وغورځوي او(( قطره قطره بهم شود دریا)) په اصولو د عمل له لارې ښه په اخلاص د مقابلې ډګر ته راؤوځي اوژردلویدیځ ددې سیلاب مخه ونیسي .

زموږهر دقلم څښتن بایـد دې حقیقت ته متوجې اوسي چې پدې دین کې د ابلاغ ډېر لوی ارزښت دی ، اسلام د حق او صداقت خپراوی او د باطل مقابله او خلک ورنه خبرول د هر مسلمان مسئولیت ګڼي ؛ داسلام بنسټیز هدف چې د کلمة الله اعلاء ده ، دا دوه جزونه لري یو احقاقِ حق اوبل ابطالِ باطل ؛ اسلام چې ددې دواړو حکم کوي نو ورسره ضمناً پدې دواړو ډکرونو کې د مؤثرو او کامیابو وسایلو د کارولو حکم هم کوي چې طبعا مؤثره او کامیابه وسیله رسنۍ دي .

داخبره هم ډېره دتوجو وړ ده چې په اسلامي نړۍ کې تش په نامه ګڼ داسې پوهان شته چې

نه یواځې دا چې نړۍ بې خبره او محرومه پاتې ده بلکې د نړیوالو افکار داسلام اومسلمانانوپه اړه بيخې د حقیقت معکوس ګرځېدلي دي نو ځکه د مسلمانانو د خپلو رسنیو سره دا هیلې تړل کېدای شي چې د اسلامي عالي اخلاقو ، سیاسی ، تهذیبی او ثقافتی اقدارو او خوبیا نو سم اشاعت او نګراني به وکړی شي چې د اسلام اومسلمانانوپر ضد د تبلیغاتو غاښ ماتونکی جواب وګرځي .

داهم باید له یاده ونه باسوچې نړیوالې رسنۍ یواځې په کفري نړۍ کې داسلام اومسلمانانو دبدناملو اوداسلام داشاعت دمخنیوي لپاره نه کارول کېږي بلکې زموږ په اسلامي نړۍ کې دمسلمانانوپه ټولنیز ژوندهم اوس د مطبوعاتو اغېزې ډېرې جورې دي ، په اسلامي نړۍ کې د فحاشۍ په خپرولو او د اسلام د عملی ، فکري ، تهذیبي او لوړ اخلاقي تشخص نه د مسلمانو ځوانانو د لرې کولو لپاره غربې میډیا شپه او ورځ پر ځان یوه کړیده ؛ چې ددې دجالي پروګرامونو مخه هم یواځې د مسلمانانو خپلې رسنۍ نیولی شي .

د نړۍ په مختلفو برخو کې د کفارو یاد هغوئ د لاسپوڅو دیکتاتورانو له لورې پر مسلمانانو ډېر ستر ظلمونه او وحشتو نه روان دي خو نړیوالې رسنۍ ددې مظلومو مسلمانانو په حالت سترګې پټوي او د ظلم او وحشت کوم خبر او حالت چې نشي پټېدای هغه د یو عام خبر په صورت کې وړاندې او پر حقیقی صورت یې پردې را اچوي نو په داسی حالت کې د مسلمانانو په لاس کې د خپلو داسی رسنیو اړتیا ده چې لږ ترلږه ددې مظلومو مسلمانانو دمظلومیت غږپورته؛ داصل حالت نه یې نړۍ خبره او د ظالمانو حقیقې وحشي- څېره نړۍ ته ښکاره کړي.

د اسلام او مسلمانانو د دښمنانو او د هغوئ د فکري غلامانو له لورې پر رسنیو اوسنۍ قبضې باندې یواځې غم او افسوس ښکاره کول او ډګر اغیارو ته پرېښودل د مسئلی حل ندی بلکې پدې حساس وخت کې ددې خبرې ډېره زیاته اړتیا لیدل کېږي چې ذی استعداد ټول مسلمانان درد او قبول خود ساخته معیارونو ته شا کړي ؛ مادي ګټې ، عزت او شهرت له نظرونو وغورځوي او(( قطره قطره بهم شود دریا)) په اصولو د عمل له لارې ښه په اخلاص د مقابلې ډګر ته راؤوځي اوژردلویدیځ ددې سیلاب مخه ونیسي .

زموږهر دقلم څښتن باید دې حقیقت ته متوجې اوسي چې پدې دین کې د ابلاغ ډېر لوی ارزښت دی ، اسلام د حق او صداقت خپراوی او د باطل مقابله او خلک ورنه خبرول د هر مسلمان مسئولیت ګڼي ؛ داسلام بنسټیز هدف چې د کلمة الله اعلاء ده ، دا دوه جزونه لري یو احقاقِ حق اوبل ابطالِ باطل ؛ اسلام چې ددې دواړو حکم کوي نو ورسره ضمناً پدې دواړو ډکرونو کې د مؤثرو او کامیابو وسایلو د کارولو حکم هم کوي چې طبعا مؤثره او کامیابه وسیله رسنۍ دي .

داخبره هم ډېره دتوجو وړ ده چې په اسلامي نړۍ کې تش په نامه ګڼ داسې پوهان شته چې

دمادیاتوپه بدل کې داغیارو د لاس آله ګرځیدلي دي اود خپلو لیکنو ، مرکو او د رسنیو د نورو پروګرامونو له لارې د اسلام د اصل روح د مسخ کولو او د عامو ساده مسلمانانو د بې لارې کولو کوششونه کوي چې د دوئ مقابله یواځې د شریعت د اصل روح او مزاج نه خبر هغه زیرک دیني عالمان کولی شي چې د دښمن شومو پلانونو ته متوجې وي او په رسنیو کې په ځای پیداکولواو مقام جوړولو توانیدلي وي ؛ نودامامت دعالي دندې اود تدریس دسترخدمت ترڅنګ دمطبوعاتو پدې ډګرکې خدمت کول هم ډېر اړین اوددې وخت لویه غوښتنه ده چې باید علماء دې غوښتنې ته مثبت ځواب ووایې او خپل مسئولیت ادا کړي .

داسمه ده چې اوس مسلمانان پدې ډګر کې ډېر وروسته پاتې دي ؛ لایې ډېر اوږد سفر پر مخ دی او ډېر زیات کوښښونه ورپه غاړه دي خو ددې ترڅنګ دخوښۍ خبره داده چې هوښیارو ، دردمنو او زیرکو مسلمانوځوانانو د مطبوعاتو د اهمیت په درک کولو اوس دې ډګر ته رادانګلي دي چې دا ډېر لوی غنیمت دی ؛ ډېره ګټه یې کړیده چې دښمن یې هم ورخطا کړیدي ، او د امریکا په نوم هغه سترفرعون چې دنړۍ په ټولو رسنیو یې قبضه ده داسلامي امارت د محدودو خو د حق او صداقت د علمبردارو رسنیو په مقابل کې د خپل شکست اعتراف کولو ته اړ شوی .

د مسلمانانو خپل دا اخبارونه، دینی رسالې ، جرائد ، مجلې ویب پاڼی اوایف ایم کوچنۍ رادیوګاني به انشاء الله د باران هغه ړومبۍ قطره شي چې له ځان سره یې د رحمت داوږد باران زېری راوړي وي ، درحمت دا باران به بیا الله ددښمن لپاره په داسی زحمت بدل کړي چې ټولې هیلې او شوم پلانونه به یې دخاوروسره خاورې کړي .

خو موږ باید داخبره له یاده ونه باسو چې زموږرسنۍ به د همدې عالي اهدافو او مقاصدو لپاره کارول کېږي چې اسلامي اصول، مبادي اواخلاق به پکې هیڅکله له پامه نه غورځول کېږي ؛اسلام درواغجن ، فاحش، ښکنځلمار، باطل پرست ،دحقایقوخلاف ، اشخاصو، ولسونو، اومذهبونو ته سپکاوي کونکي مطبوعات رد وي او هیڅکله خپلو متبعینو ته دا اجازه نه ورکوي چې د دروغجنو او زهرجنو تبلیغاتو له لارې خپلو اهدافو ته د رسېدلو هڅې وکړي ؛ موږ چې د وروستي حق اسمانی دین پیروان یواو ددې دین لارښونو ته پوره ژمنتیا د ټولو بریالیتوبونو سرچینه ګڼو نو قدم په قدم په ټولو چاروکي دروا اوناروا تر منځ تمیز ډېر ضروري ګڼو او خپلو اهدافو ته د رسېدلو لپاره د ټولو هغو وسایلو په کار اچول روا نه ګڼو کوم چې زموږ پر ضد دښمن په کاراچوی اوعملاً ترې اجتناب خپله فریضه ګڼوخوچې دحرامو ارتکاب مو نه وي کړی ددښمن پرضد ددښمن خپله وسله کارول نهیواځی رواعمل بلکې لو کمال یې ګڼو چې لله الحمد ځوانان مو اوس دهمدې مېتود نه کار اخلي اوښه په بریالیتوب یې مخ په وړاندې بیایې .

# راهکارهای تقویت امور جهاد فرهنگي

ابوصهیب حقانی هراتی

قبل از هر چیز باید این موضوع را بدانیم که تهاجم غرب به سرکردگی امریکا در سرزمین ما (افغانستان) تنها تهاجم نظامی نبوده است؛ گرچه تبلیغات هجوم نظامی و نوع این تهاجم در دنیای رسانه و مطبوعات خبرساز تاز و مهم تر جلوه داده شده و می شود؛ اما باید به یقین بدانیم که تهاجم فکری و فرهنگی دشمنان قسم خوردهٔ مسلمانان در جریان سیزده سال گذشته به مراتب خطرناک تر، زیان بار تر و مهلک تر بوده که متاسفانه تا هم اکنون این تهاجم فکری و فرهنگی به شدت جریان دارد؛ و دشمنان دین مبین اسلام اگر از یک طرف در تقویت نهادها وسازمان های نظامی شان تلاش و کوشش نموده اند از سوی دیگر در بخش ارتزاق فرهنگ منحط غرب به اسم دیموکراسی پوچ و بی اساس، سخت در تلاش بوده و هستند تا ضمن استحکامات نظامی، پایه های فرهنگی خویش را نیز علیه ملت مومن و با غیرت افغان، تقویت نمایند.

بر این اساس این یک فرض مهم احساس می شد که مجاهدین امارت اسلامی همانگونه که لله الحمد سنگرهای داغ جهادی در میادین نظامی را بسیار فعال نگاه داشته و در عرصه های نظامی در بسیاری از معرکه ها حماسه های بی نظیر تاریخی را خلق نمودند و پوزهٔ استکبار جهانی را با وجود آنکه از نظر تجهیزات نظامی صاحب امکانات بیشتری بودند به خاک ذلت مالیده و آنها را محکوم به شکست حتمی نمودند؛ می طلبید که به همان قِسم و بلکه بیشتر باید به قسمت تهاجم فکری و فرهنگی دشمنان نیز توجه نموده و از استعدادهای خدادای و انسان های مسلکی، مجرب، دین دوست، آگاه و با استدلال نیز استفاده کرده و جبهات فکری و فرهنگی را همانند جبهات نظامی در مقابل هجمات سنگین و بعضا متفاوت و متنوع دشمنان گرم و محفوظ نگاه می داشتند و در این قِسمت تمام تلاش خود را به کار بسته و بسیار اساسی و بنیادی عمل می نمودند، که لله

الحمد به فضل و مرحمت الله متعال، و اخلاص و درایت بزرگان جهاد مقدس فعلی علیه قوای اشغالگر، در امور جهاد فرهنگی نیز کارهایی درخشان در عرصه های مختلف انجام گرفته است که الحق و الانصاف با وجود محدودیت ها و مشکلات تخنیکی و حالت انقلابی و جهادی، خدا را صد هزار مرتبه شکر که در این جبهات فکری و فرهنگی نیز فرزندان مخلصِ وطن، قلم به دستان و نخبگان فهیم کشور گرد هم جمع آمده و آنچه در توان داشتند از خدمت و فداکاری در این عرصه دریغ نورزیدند و بدون اِغراق دوشادوش فداکارهای مجاهدین در عرصهٔ نظامی پیش رفتند و با استدلال قوی، اصول کاری، منطق مجیب، دانش ژرف، عقل سلیم و اخلاص ایمانی شان، بسی پلان های شوم و بسیار خطرناک فکری و فرهنگی دشمنان را خنثی نموده و نقشه های شیطانی غربی ها و غلامان حلقه به گوش آنها را نقشه بر آب نمودند.

اما در این باره، همانگونه که دشمنان دست از تلاش شوم خود برنداشته و برنمی دارند و حتی بر شدت فعالیت های شان نیز افزوده اند و هر روز تبلیغ فرهنگ و عنعنات غربی خود را رنگ و لعابی تازه داده و در قالب های جدید و جذاب تری وارد زندگی افغان ها می نمایند بر مجاهدین غیور نیز فرض عین است که جهاد فرهنگی خلاف دشمنان دین را بیش از پیش مورد توجه و عنایت خویش قرار داده و با استفاده از راهکارهای مفید و مناسب، پلان های دقیق و مفیدتری را طرح کرده و به اجراء بگذارند و راهای نفوذ و رسوخ دشمنان را با راهکارهای مناسب و مستدل، مسدود نمایند و ان شاء الله که دشمنان در امور تهاجم فرهنگی نتوانند به جز افراد خاص و فریب خوردهٔ خود بالای قاطبهٔ ملت مومن و مسلمان افغان تسلط پیدا کرده و خدای نخواسته فرزندان رشید و جوانان غیور وطن را به بیراهه بکشانند؛ هر چند که آرزوی دشمنان اینگونه است؛ اما به فضل و یاری الله جل جلاله و توجه خاص مسئولین جهادی امارت اسلامی و تلاش شبانه روزی و خستگی ناپذیر مجاهدین متعهد و قلم به دستان مخلص، دشمنان این آرزوی شوم خود را هم به گور خواهند برد ان شاء الله.

بعضی راهکارهای که برای تقویت امور جهاد فرهنگی ضرورت می باشند قرار ذیل است:

**الف)** درک کامل اهمیت موضوع جهاد فرهنگی و واقف شدن بر ضرورت تقویت سنگرهای فکری و فرهنگی مجاهدین.

این یک مسئلهٔ پذیرفته شده است که هر چه قدر اهمیت یک موضوع درک، و برای یافتن تقویت آن، ایجاد انگیزه شود به همان مقدار،

اسباب رشد و تعالی آن موضوع فراهم می شود.

**ب)** شناخت اساسی و مطالعهٔ دقیق در باره تهاجم فرهنگی دشمنان.

با مطالعهٔ دقیق و اساسی در بارهٔ جنگ های فکری و فرهنگی دشمن در ادوار تاریخ و همچنین شناخت کافی از نوع تهاجم دشمن، بهتر می توان راهای مقابله با آن را یافت و مناسب به تهاجم دشمن عرض اندام نمود.

**ج)** فراهم شدن و تسهیل بیشتر اسباب مبارزه جهاد فرهنگی.

با فراهم شدن و تسهیل بیشتر اسباب مبارزه، قدرت جنگیدن در جبهات فکری و فرهنگی از دشمن گرفته می شود و یا حداقل از سرعت و نوع حملات مختلف آن کاسته شده و فرصت جبران بهتر حاصل می گردد.

**د)** گزینش و انتخاب افراد آگاه، علمای دلسوز، جوانان فهیم و جذب دانشمندان و مفکران متعهد و مسلمان.

بدون شک نیروی انسانی ضرورت یک تشکیلات مهم مبارزاتی می باشد و هر چه قدر که افراد متصف با صفات یاد شده دور همدیگر جمع شوند؛ یقنیا فرصتهای زیادی از دشمن سلب می شود و زمان شکست دشمن را کوتاه تر کرده و آن را با نابودی نهایی قرین می سازد.

**هـ)** تدویر جلسات و تشکیل سمینارهای کوتاه زمان و مشوره گرفتن از



اصحاب اهل نظر و جلب همکاری از آگاهان امور و دلسوزان آیندهٔ وطن و حافظان تمدن اسلامی؛ البته با در نظر داشت شرایط زمانی و امکانات موجود.

تشکیل اینگونه جلسات در جهت تبادلهٔ آراء و اندیشه ها نتایج بسیار خوب و مثبتی در پی خواهند داشت و حتی در مواردی قدرت تصمیم گیری و پلان کشی را از دشمن سلب کرده، و همچنین آگاهی بیشتر، اسباب مراقبت سالم تر و حفظ بهتر از کیان مقدس فرهنگ اسلامی را فراهم می آورد.

**و)** شناخت سلاح متنوع دشمن در تهاجم فرهنگی و شناخت اهداف کلی و جزئی دشمن در تهاجم فرهنگی و همچنین اولویت ها و اولیت های دشمن در این عرصه.

از آنجایی که دشمن در طول تاریخ بخاطر ترویج و تبلیغ فرهنگ پوچ و بی اساس خود در رنگ های مختلف و اسم ها و عناوین گوناگون عرض اندام کرده و می کند و کوشیده است که ابتداء بطوری ناشناخته در جوامع اسلامی جای بگیرد و سلاح دست داشتهٔ خود در امر تهاجم فکری و فرهنگی را به سرعت تغییر و تبدیل داده و می دهد پس مناسب است که فرزندان اسلام در امور فعالیت های فرهنگی با نوع سلاح و اهداف برجسته و قابل تغییر دشمن، آشنایی کامل و لازم را داشته باشند تا بتوانند دقیق تر مواضع دشمن را هدف حمله قرار بدهند.

**ز)** حضور فعال و فراگیر در تمام شبکه های اجتماعی و تجهیزات رسانه ای و ایجاد فرصت های مناسب برای جلب و جذب دوست داران وطن و مسلمانان غمخور دین و آینده.

هر اندازه که حضور و فعالیت های مجاهدین در شبکه های اجتماعی فعال تر و پر رنگ تر باشد به همان میزان به دشمن ایجاد ترس و دلهره پیدا شده و جلوی نفوذ و فعالیت های شوم و گستردهٔ آن منحصر و گرفته می شود و همچنین چانس شناخت و سطح آگاهی عموم ملت از مجاهدین و از مجاهدین برای عموم ملت بیش از پیش افزایش یافته و فراهم می گردد.

به امید بیداری و هوشیاری همه جانبه ملت شریف افغانستان از تمام هَجَمات دشمنان.

# دمسلمان ژورنالست ځانګړني !

(مفتي ابوماريه)

حامدا ومصليا وبعد:

ځرنګه چې نړۍ دغربي ښکېلاک تراغېزې لاندې ده ، نومناسب ده چې په موضوع کې همدغه اړخ دتقابل په ډول په نظر کې ونيسو.

غربي فکر اودهغوئ مقلدين دژورنالست مقاصد داګڼې : چې خلکو ته معلومات پيداکړي ، دهغوئ ذهني خوځښت ته وده ورکړي، هغوئ ته دراتلونکي په اړه لارښوونه وکړي . اوداسې نور...

داخبره دماهيت په لحاظ دژورنالست په مفهوم کې داخله ده ،اوترډيره ځايه دغه خبره سمه هم ده ، مګر دايواځې اوس ترتعبير پورې پاته ده اوعملي بڼه يې ددوئ دميراثي عادت له مخې تحريف شوي ،ځکه چې په غرب اوکفري نړۍ کې دوړاندېني ذکرشويو مقاصدوپه ځای اوس ژورنالست دوه نورسترمسئوليتونه لري ، چې يويې کورنی اوبل يې باندينی دی ، داخلي مسئوليت يې دادی :چې دخپل قوم دلارښووني ،پرمختګ ،يووالي ، روزني اونورو........ ته کاروکړي ، اودوهم مسئوليت يې دادی : چې دنړۍ خلکوته دغرب اوډيموکراسۍ فکر اوتهذيب ورکړي ، اوداسلام په وړاندي [ چې غربيان يې دخپل فکر اوديموکراسي په وړاندي خنډ ګڼي ] دتبليغاتي جګړي لپاره هرډول مبارزه په مخ بوځې ،خلکو باندي ذهني فشارونه وارد کړي ،چې ورسره دمخالف فکر اوعقيدي مخه ډب کړي ،دهغوئ حوصلي ماتې کړي ، اوپه خپل مينځوکې يې دشخړو اواختلافاتو ښکار کړي . لنډه داچې هغوئ په ځانګړي ډول يوه سخته جګړه په مخ بيايې ، ترديې چې که وغواړي نو فرد اوټولني ته هرډول رنګ ورکولای شي . يوسخت ظالم اوجابر، په مظلوم اومظلوم په ظالم تعبيرولای شي ، دبيلګی په ډول : اسرائل چې خباثت اوظلم يې

دلمر په څېرروښانه دی دوئ يې څه ډول دتمدن اوعدل سمبول ګڼي، بل جانب ته مظلوم فلسطنيان جابرين غاصبين اوانسان وژونکي ګڼي ، عين همدغه حالت په افغانستان کې دی چې دوطن اصلي بچي اودفاع کونکي تروريستان اودانسان دښمنان و ګڼل شول اوراغلي يرغلګر بيا بشردوستان اودسولي مرغان ګڼل کيږي . اودهمدغه مقصدلپاره يرغلګرو په افغانستان اوبهر کې څومره رسنۍ [ ويب پاڼي ، تلويزونونه ، راديوګاني ،اخبارونه اونور...] اومزدوران په دغه کار وګومارل .

له دي وړاندينې لنډ بحث څخه تاسوته دکفري اوغربي نړۍ دژورناليست محرفه بڼه اودهغه ټول ذميم اوصاف اوناوړه څيره ښکاره شوه ، اوس به داسلام په سپيڅلي دين کې دژورنالست هدف ، کړنلاره اودهغه ځانګړتياوي درته په لنډ ډول وښيو .

په اسلام کې دژورنالست هدف دادی : چې دپيښو ، واقعاتو او خبرونو داسې تشريح وکړي چې ټولنه دخيراوصداقت لورى ته بوځي ، اوهغه دبشريت دهوسايې ،سوکالي اوتمدن لپاره خپل هيڅ زيار ونه سپموي . دمسلمان ژورناليست ترټولو لويه ځانګړتيا داده : چې هغه دکفري نړۍ په څېر دباطل ،ظلم ،جبر اوتحريف کړنلاره نه لري ،بلکه هغه ديوه بل سوچه مسلمان په څېر په عقيدوي اوعملي ډول داسلام داصولو اوقوانينو پابند دی ، هغه په ټولنه کې ديوه سپېڅلي معلم ، داعي ،مبلغ ،مجاهد ، مصلح او.... په ډول دخلکوپه زړونو کې ځای لري . هغه امور چې مسلمان ژورناليست دغه مقام ته رسوي ،يادهغه ځانګړني دي ياهغه پري مکلف دی په لاندي ډول دي :

۱= دنيت خلوص : څرنګه چې مسلمان ژورناليست دحق دلاري يوسپېڅلی مبارز دی ، اوهغه په دغه لاره کې ډيري ستغ اوکړليچونه په مخ کې لري نوښکاره ده چې هغه به دغه کړاوونه دنفس دخواهشاتو ، ثمن قليل يادنورو دستاينو په موخه سرته نه رسوي بلکه هغه به داټولي ستونزي يواځې دخپل رب څخه داجر اوثواب په تمه وي . او دژوندپه ټولو ابعادو کې به يې نيت دالله ج رضاء اودهغه څخه دبدلي په اړه وي . وما امروا الاليعبدوالله مخلصين له الدين . الاية اودوئ په دي ماموردي چې يواځې دالله تعالى لپاره به عبادت کوي اوخپل ټول اعمال به خالص دده لپاره کوي .

اوپه حديث شريف کې راغلي : انماالاعمال بالنيات وانمالکل امر مانوى الحديث په اعمالو سره دثواب موندلو مدار په نيتونو بناء دی .

۲= دشهرت اورياء کاري څخه ډډه :يعني مسلمان ژورنالست چې څه خپروي هغه به دټولني دخير اوښېګڼي لپاره وي ، شهرت اونوم پيداکول به يې مطلب نه وي ، ځکه دادقلم

است که تو آن را مرتکب شده ای ، پس به سوی الله متعال برگرد واز گناهانت توبه کن.هرگاه از دوستان وبرادرانت محبت وعلاقه روز افزون را دیدی دقیقا بدان که این کار نتیجه طاعت وحسنات تو است که الله متعال ترا به آن توفیق داده است ، پس شکر رب العلمین را به جا آور.تزکیه مشکلات و مصایب راکه انسان به آن روبرو می شود، آسان می سازد.امام ابن تیمیه رحمه الله گفته است:"ما یصنع بی أعدائی؟ ان جنتی وبستانی فی صدری ، إن رحت فهی معی لا تفارقنی وإن حبسی خلوۀ وقتلی شهادۀ وإخراجی من بلدی سیاحۀ"١٢

دشمنان به من چه خواهند کرد، جنت وباغ من در سینه من است، هرجا بروم، بامن خواهد بود وازمن جدا نمی شود، اگر مرا به زندان بیفگنند، خلوت می گزینم ؛ اگر مرا بکشند، شهید می شوم، اگر مرا از شهرم تبعید کنند، به سیاحت می روم.

**نتیجه گیری:**

ازتوضیحات وبررسی فوق به گونه ذیل نتیجه گیری صورت می گیرد:

.١تزکیه نفس عبارت از پاک ساختن نفس از امراض وآفات معنوی وآراسته ساختن آن به صفات محموده وپسندیده است.

.٢تزکیه نفس در کامیابی دنیا وآخرت انسانها نقش به سزایی دارد.

.٣انسانهای پاک نفس همیشه درزنده گی دارای اعتماد به نفس، متکی به خود،پابند به ارزشها، به دور از فحشا ومنکرات می باشند،درجامعه، انسانهای دیگر برآنها اعتماد نموده مصدر خیر وصلاح بوده میتوانند.

.٤وسایلی که برای تزکیه نفس به کاربسته می شود باید، مشروع باشد،به هیچ وسیله نا مشروع وخلاف هدایات قرآن وسنت ممکن نیست که انسان به تزکیه نفس برسد.استفاده ازوسایل نا مشروع زمینه آلوده گی نفس را بیشتر می سازد.

.٥مهمترین روشها واسالیب تزکیه نفس در دین مقدس اسلام، عبارت اند : ازادای فرایض، ذکر وتلاوت قرآن،ترک معاصی، عدم ریا دراعمال،محاسبه نفس، دعا کردن، همنشینی با صالحان.

# د ملي وحدت حکومت د جان کيري

# د نيم ساعت ابتکار

استاد محمد زمان مزمل

يو کال مخکې د انتخاباتي پړاو په اول سر کې د امريکا لپاره اشر کوونکيو رهبرانو او مشرانو پخپلو کې غونډې جوړې کړې او په دې غونډو کې هغو مشرانو چې د امريکا سفير ورته په ليدنو کې خوږې خبرې کړې وې او د نورو په نسبت يې د مشرۍ هوس زيات ؤ، هغه پکې د يو متحد کانديد د ملي اجماع په عنوان پخپلو ډېرو کې د امريکا د کوربه ټيکه دارانو ډلې ټپلې دعوت کړې او تر يوه حده ځنې پکې د درې مياشتو لپاره تاوده وچليدل، ولې کله چې خبره په صراحت ودريدله، نو ټول پوه شول چې د دوی په اصطلاح مبتکرين پکې غواړي خپل ځانونه د متحد کانديد په عنوان کانديد کړي، له اره نور داوطلب کانديدان د متحد کانديد او ملي اجماع له شپول نه ووتل او د کانديدانو شمېره پر ۲٦ کانديدانو ودريدله.

البته چې دې شمېرې د امريکايانو لپاره د لوبې ميدان ستومانونکی ښوده نو بيا او د بل ځل لپاره همدغو ډلو په يوه نوي انداز د متحد کانديد لپاره جرګې او مرکې په لاره واچولې، ولې پای د کميسيون شرائطو او د حذف پټو دستورونو شمېره پر لسو کانديدانو ودروله او په دې ډول د متحد کانديد او ملي اجماع يوه کلنه افسانه هاغسې د اوتو بوتو افسانه شوه او لس کانديدان انتخاباتو ته ننوتل.

که څه هم دا ځل په انتخاباتو کې پرګنو په قومي انداز تېز رنګه حضور وښود او پای پکې د کميسيون په زړه چاودې محاسبه کې د تحول او اصلاح کانديدان يا د بشردوست په اصطلاح عېن او غېن پکې د سر کانديدان شول.

په اول دور کې ډاکټر عبدالله عبدالله د ډاکټر اشرف غني نه خورا ډېر مخکې شو او هغه

له کميسون او ملت نه ډېر خوشاله ښکاريده، که رېښتيا مې پوښتې نو هغه په همدغه اول پړاو کې ځان د دې هېواد کامياب کانديد بلکې عملاً رئيس جمهور ليده.

د ټولټاکنو په دويم پړاو کې خبره د دوو کانديدانو په منځ کې (هم د مايوسو پر ګنو په سطحه او هم د ناکامو کانديدانو د تروټه مؤکلينو په کچه) په يوه تود کمپاين بدله شوه او پای پکې ډاکتر اشرف غني د عبدالله يو خروا

کمبود هم پوره کړ او د هغه د ۴۵ درجې هرم پر سر يې نورې ۹ شميرې زياتې هم کړې .

ډاکټر عبدالله عبدالله چې فکر کاوه مقابل لوری به د هغه ۴۵ شميرې ته په مشکل ور ورسېږي، هغه پکې د ګټونکي ډاکټر اشرف غني سره مخامخ شو او له واره يې هم په اعتصاب لاس پورې کړ او هم يې په لويو واټونو کې خپل تصويرونه د نوي رئيس جمهور په عنوان وځړول او غرب او امريکا ته يې د نظام د نسکورولو ډېر کې ورکړې.

جان کيري له امريکا نه د پيريانو په مزل راوخوځيد او پخپل سفارت کې يې دواړه مخکښ کانديدان چې د سياسي جګړې پر کرښه ولاړ وو، راوغوښتل او د نيم ساعت په موده کې يې د ډلو د يو کال کار او د ملي وحدت د حکومت زړه طرحه کې ساه ور پوه کړه او دواړو مخکښو کانديدانو د جان کيري د پاستو لاسونو په برکت

د اجماع او وفاق د رايو وقار او عزت د يوه پردي وزير د حکم او خواهش په منځکې لکه د پښتنو د عذر پسه حلال کړ.

هغه ورځ چې ما د جان کيري د لاسونو زور وليده چې آسمان ته ختلي کانديد يې د زمکې له کانديد سره د سترګو په رپ کې نژدې او راضي کړل. ماته د تېر دور هغه دروند ماښام راياد شو چې په همدغسې ورته سياسي ربړه کې حامد کرزي جان مکين پخپلو سرو سترګو د تلويزيون پر وړاندې په هغو خبرو باندې مجبور کړ چې حامد کرزي پکې لکه د تهجدو دعا ټکی په ټکی زمزمه کوله او پاتې سپيرې خاطرې يې له کرزي سره دي.

د امرخيل د اظهاراتو او نورو امريکايي لوړو منابعو له اظهاراتو او ليکنو نه له ورايه ښکاري چې په هغه انتخاباتو کې امريکا تر دې هم زياته مداخله وکړه او د ملي وحدت دغه طرحه يې هغه مهال هم په زور پر کرزي منله او دا په دې خاطر چې د فاسد او دوه سري نظام کمزوري پکې د امريکا د قوي مداخلو ښه چانس دی.

بيا هم کرزي پکې د هغو ترخو ورځو په بدل کې د امريکا نه پخپله کندهارۍ طريقه هغه غچ واخست، ولې امريکا پر راغلو دوو مشرانو خپل امنيتي تړون نالوستی او په ۲۴ ساعتونو کې امضاء کړ او دهغې ماتې تلافي يې وکړه او نن پکې د سياست طوطي ژبې بيا هم د ملي وحدت د حکومت مړه حمائيه ژوندۍ ستاتي او د امريکا

غوړه مال سياسيون هره ورځ پکې د خپل حامي مثبت کردار په نرخ په ملت باندې له سره خرخوي.

د ملي وحدت حکومت چې لا د ډاکټر صاحبانو لپاره معما ده، د کابل د رسنيو کرايي خبر لوڅي او سياسيون پکې داسې زړه راښکونکې تبصرې کوي چې د هغوی په شان د يوه ليوني لپاره د مدين فاصله افسانه غږوي.

په کابينه کې د کليدي او غير کليدي وزارتونو پر سر بحث کميسيون بندو دروازو ته درولی، بيا هم معلومه نه ده چې د وزارتونو په درجه بندۍ کې به بيا يو لوړ پوړی امريکايي راځي او که به دواړه مشران امريکا ته په راتلونکې سفر کې د کليدي وزارتونو لست په سپينه ماڼۍ کې پخپلو کې سپينوي.

د انصاف نه بهر ده چې انسان د يوه ملت په سياسي ژوند دغسې منفي وغږيږي لکه مونږ چې وغږيدو، ولې له بده مرغه زه اوس هم ځان پړ ګڼم، چې ما به په دې تحليل کې اوس هم ډېر مجامله کړې وي، ځکه تجربه ښيي چې د تېرو ۱۳ کلونو خام او غلام سياستونه به نور هم مونږ له داسې څه سره مخامخ کړي لکه چې ځينو لويدلو ژورنالستانو دغو انتخاباتو ته حماسه انتخابات ويلي.

کومې ترانې چې جان کيري په سفارت کې مخکښو کانديدانو ته ورکړې د هغې شاهين جان کيري له ځان سره وړی، دوی پکې نه پوهيږي چې د کرزي دغه د اولې درجې فاسد نظام څنګه اصلاح او تحول پکې له کوم ځای نه پيل کړي، بلکې همدغه دوه سرې حکومت پکې د ملي وحدت د پاتې نيمژواندې جذبې د وژلو لپاره کافي توان لري.

د نيم نه زيات افغانستان دا ۱۳ کاله د بد امنۍ او جنګ ښکار دی او دلته امريکايي افغانان پکې هغه د نجيب په حد کې مخالفينو ته له تشو خبرو هاخوا هيڅ قيمت نه ورکوي او دوی ملي وحدت د روم او شمال د ګروپونو په منځ کې د حکومت د کليدي چوکيو تقسيم نه وای، جنوب او شرق که د جګړو په اور کې سوزي د دوی يې څه؟ ځکه د طالبانو سره تفاهم او خبرې د ډالرو ژرندې پڅوي او دا هغه خبره ده چې جان کيري يې پخپلو سفرونو کې دغو مشرانو ته د خدای په امانۍ پر مهال په غوږونو کې پټه کوي او دوی ته اجازه نشته چې هغه مخامخ ملت يا نورو ته بربنډه کړي.

يادښت :دپوښتونکې پوښتنه په خپله اصلي بڼه خپريږي ،دمجلې اداره يې په املايي تصحيح کې کوم ډول تصرف نه کوي !

مننه /اداره.



# ذبیح الله مجاهد

## څو شیبې له خپل ولس سره!

**مجاهد صاحب** سلامونه مې ومنی زما پوښتنه دادی چی تاسی او ستاسی ملګری یوازی پر نظامی ځایونو باندی حملی کوی په داسی حال کی چی په کابل کی ۷۵ تلویزونی شبکی موجودی دی چی یوازی فحشا خپرول یی کار دی او خلکو نه یی اسلامی او افغانی کلتور وا خیست په دی هکله ستاسو نظر څه دی ؟ ستانکزی

**ځواب** وروره په دې اړه چې ځینې مغرضې کړي او تش په نوم رسنۍ چې دغربي لوڅ فرهنګ او بیګانه افکارو دتعمیم لپاره هڅه اوفعالیت کوي زموږ تردقیقې څارنې لاندې دي ، خو ستونزه په دې نه حل کیږې چې موږ په دغو ځاینو بریدونه وکړو ، کله چې له خیره سره په هیواد کې دیرغل تغر ټول شي او اسلامی نظام حاکم شي دغه فتنه به پخپله له منځه ځي او خلکو ته به سالم نشرات وړاندې کیږې چې داسلام مبارک دین او افغاني درونـد فرهنګ یي اجازه ورکوي ، پاتـه شول هغـه تلویزیونونـه چې دامریکا دسفارت په پیسو چلیږې او دهغو لپاره کار کوي ، لـرې نـه ده چې هغـوی بـه هـم خپلو خلکوتـه حسـاب ورکـړي او ددغـو فحشـاوو دخپرولو درنه بیعه به ادا کړي . ان شاءالله

**ستاسو دکامیابۍ په هیله !**

**زما پوښتنه** داده چې تاسې دافغـان حکومـت سـره دخبـرو لپـاره چمتویاستی ، کـه وئ ستاسو شرطونه څه دي . والسلام

**ځواب** نه ، موږ دکابل اداري سره خبروته چمتو نه یو ځکه هغوي بي واکه دي دتصامیمو او پریکړو صلاحیت او کفایت نـه لـري ،نو موږ نـه غواړو په تشو او بي ګټې خبرو خپل وخت ضایع کړو . مننه

**ګران مجاهد ورو ښاغلی مجاهد صیب** له ښه مرغه ستاسو دقربانیو په پایله کې اوس بهرني ځواکونه دې ته اړشول چې هېواد لکه دروسي ښـــکلېلاګرو پـــه څېـــر پرېـــږدي

نو پوښتنه داده چې دسولې خبرې کول کوم زيان لري نشي کېدای چې سوله وشي ؟ حقمل

**ځواب ـــ** وعلیکم السلام ! وروسته دهیواد له بشپړې آزادۍ به ممکن ټولې لازمې او اړینې چارې وسنجول شي چې دافغانانو تـرمنځ درزونه او اختلافونه په سمه توګه حل او بدبینۍ ګوښه کړل شي ، خو ترڅوچې یرغل باقي وي او یو امریکایي عسکر هم وجود ولري افغانان مستقل نه دي بلکې له هرې خوا له ګواښ ، مرګ او زيان سره مخ دي نو ترهغو پورې به له کوم چاسره سوله ګټوره نه وي ځکه زموږ په وړاندې یرغلګر قرار لري او هغو سره داشغال دشتون په صورت کې سوله معنی نلري بیا په خاص ډول هغه سوله چې دوی یې دخپلې خوښې مطابق په مطبعاتو کې وخت په وخت اعلانه وي چې په خارجیانو به کار نه لري ددوی په اصطلاح اساسي قانون به مني اسلحه به ایږدي او داسي نور شرائط چې یوازي دخلکو په ستر ګو کي دخاورو اچول او دمجاهدینو څخه دتسلیمۍ غوښتل دي . مننه

لاندې د یو ورور څو متعددې پوښتنې دي چې ځواب شوې دي :

۱ـ څو ورځې دمخه په راپورونو کې وویل شول چې له کونړ ولایته ټول بهرني ځواکونه ووتل، وروسته د کونړ ځینې علماوو په یوه غونډه کې وویل چې نور طالبان په کونړ کې د جګړې لپاره دلیل نه لري، په حقیقت کې هم د تېر په نسبت له تېرو څو ورځو راهیسې له کونړ څخه د زیاتو پېښو راپور نه ورکول کیږي، (له اتلسم اکتوبر تر اوسه نهو ورځو کې د اوو پېښو راپور ورکول شوی) ایا طالبانو هلته خپل فعالیتونه محدود کړي؟ که نه وي د پېښو د کمښت علت څه دي؟

**ځواب:** یو خو داشغالګرو په وړاندې لکه څرنګه چې په هر هغه ځای کې جهاد فرض دی، چې بهرني اشغالګر په کې موجود دي، همدا ډول په هغو ځایونو کې هم فرض ده چې بهرنیان ترې تښتیدلی خو عین دنده یې کورني مزدور دښمنان اجراکوي، زموږ جهاد د یو هدف لپاره ده، او هرڅوک چې د اسلامي نظام په وړاندې خنډ وي، داعلای کلمة الله مخه یې نیولي وي چې د جهاد د مشروع کیدو عمده مجوز ده، که هغه بهرنی اشغالګر وي او که کورنی په ډالرو مزدور عسکر، پولیس او اربکیان، په وړاندې یې جهاد فرض ده او موږ به دا فریضه له الله تعالی سره د خپلې ژمنې له مخې ادا کوو.

له دې خبرې سره چې د کنړ څخه دې اشغالګر وتلي وي او هلته دې یې په جهادي بهیر اغیز کړی وي زه موافق نه یم، جهاد او د جهاد

اراده اوس هم د پخوا په شان موجوده ده، خو تاسو پوهیږئ چې د مني او ژمي په رالنډیدو سره د هیواد په سړو سیمو کې موسمي حالاتوته په کتو زموږ جګړیز او جهادي تکتیکونه بدلیږي او د تودې هوا غونډې تحرکات له ژمني حالاتو سره موافق حالاتو ته تغیر کوي چې دا تغیر طبعاً لږ څه ځنډ او وقفه لري، خو دا موده به ډیره لنډه وي، بیرته به عملیات له نوي ژمني تکتیکونو سره پیل کیږي او تاسو به په لنډه زمانه کې د دې خبرې شاهدان وي. ان شاءالله

۲- که داسې نه وي، د بهرنیانو په نه شتون کې د جګړې لپاره کوم دلیل لرئ؟

**ځواب:** یو خو د جهاد د جواز او پیل لپاره شرط دادی چې د اعلای کلمة الله او اسلامي نظام د استحکام مخه به نیول شوي وي چې دا کار د امریکایانو له راتګ سره سم شوي او لا دوام لري، دوهم دا چې تاسو خبریاست چې له امریکایانو سره اوږد مهالی نظامي تړون لاسلیک شو دا پخپله داخبره ثابتوي چې امریکایان په ټولیزه توګه نه وځي، او د هیواد په هره برخه کې چې بهرني اشغالګر وجود ولري په ټولو هیوادوالو په برابر ډول جهاد فرض کیږي او موږ یې جاري ساتلو ته ژمن یو.

۳- که په هغه سیمو کې چې بهرنیان نه شته، جګړه متوقف شي، دا به د اسلامي امارت لخوا افغان ولس او نړیوالو ته د امن پیغام، او د بهرنیانو د وتلو په صورت کې د افغانستان د ارامۍ ضمانت نه وي؟ تاسې ولې داسې یو اقدام نه کوئ؟

**ځواب:** مخکې مو ویل شول چې جهاد د اسلامي نظام د استحکام لپاره جایز کیږي او د همدې هدف د ترلاسه کیدو پورې دوام کوي، د هیواد په ځینو برخو کې چې بهرني اشغالګر ترې تښتي هلته کورني مزدوران عین د بهرنیو عسکرو ځای نیسي او د هغو کردار اداکوي او هرڅوک چې د اسلامي نظام په وړاندې خنډ وي جهاد یې په وړاندې برابر واجب ده.

۴- له هغو ولایتونو چې بهرنیان وتلي، ستاسې د فعالیت ساحه پکې پراخه شوې، یا مو کومه ستره سیمه نیولې؟ که یوه بېلګه یې وښیئ؟

**ځواب:** دا مسلمه خبره ده چې بهرنیان د افغانستان له هرې نقطې څخه د مجاهدینو دبریدونو او قربانیو په زور وتلي او لا یې تیښته دوام لري، داخبره هم روښانه ده بهرنیان چې له اکثرو سیمو تښتیدلي هغه ځای د مجاهدینو په تصرف کې لویدلی او هلته د مجاهدینو د پراخ فعالیت لپاره زمینه برابره شوې، هغه سیمې چې د مجاهدینو تر واک لاندې راغلي او یا یې هلته په وړاندې موانع لري شوي دهلمند ولایت په ۷ ولسوالیو کې د مجاهدینو پراخ موجودیت، د کندز و مرکز د ډیرو برخو په ګډون د دشت ارچي او چهاردرې ډیرې برخې چې دښمن پخپله هم اعتراف پرې کړی، د فاریاب قیصار،

د پکتیا د مرکز او زرمت ولسوالۍ پراخې سیمې، د غزني، ګیرو، رشیدانو، قرباغ او ګیلان ډیرې پراخې برخې، د پکتیکا په ولایت کې د لرې پرتو ولسوالیو په سلو کې نوي سلنه برخې، په بدخشان کې مجاهدینو پراخ موجودیت، د زابل د نوبهار ولسوالۍ فتحه او د مرکز په ګډون له ډیرو ځاینو څخه د دښمن تیښته، د لوګر د ازرې، څرخ او خروار ولسوالۍ مطلق اکثریت سیمې، د ننګرهار د خوګیاڼو، حصارک، بټي کوټ، شیرزادو په سلو کې اویا سلنه برخې، د پروان د سیاګرد او شینوارو ولسوالیو ټوله ولسوالۍ ماسوا د ولسولای د مرکز له درې سوه متره مربع ځمکې څخه، په جوزجان، سرپل، بادغیس، کاپیسا، نورستان او فراه ولایتونو کې ډیرې لرې پرتې سیمې، دا ټولې د بهرنیو له ماتې وروسته د مجاهدینو لپاره د فعالیت په خورا وسیعو سیمو بدلې شوي دي.

۵–د بهرنیانو وتل او د افغان ځواکونو لخوا امنیتي چارې په غاړه اخیستل، د افغان دولت پیاوړتیا نه بولئ؟

**ځواب:** نه د کابل اداري عسکر او پولیس د بهرنیو په امر مجبوره شوي چې د هغو ور پاتې شویو مراکز کې واړوي، خو هغه مراکز نه تنها ساتل شوي نه دي بلکې د یو محاصره شوې پوستې او قرارګاه حیثیت لري چې مجاهدین پرې چارپیره شوي او له بریدونو او ګوابښونو سره مخ دي، ستاسو به یاد وي چې یوه نیمه میاشت مخکې په کندز کې مجاهدینو هغه مرکز له پولیسو څخه ونیو چې د اشغالګرو جرمني ځواکونو مهم مرکز بلل کیده، د زابل په نوبهار کې چې ولسوالۍ او شاخوا نظامي قرارګاوې ونیول شوې په هغو کې د امریکایانو مهمه ځاله هم شامله وه چې اوس یې کورنیو مزدورانو ته پریښې وه، همدا راز د هلمند په سنګین او نورو ولسوالیو کې چې مجاهدینو څومره ساحې نیولې او تر واک لاندې یې راوستلې په هغو کې اکثریت مراکز د امریکایانو او برتانویانو مهم نظامي تاسیسات وو، د میدان وردګو د سیداباد په تنګي دره کې د امریکایانو لخوا جوړ شوي مرکز د مجاهدینو په مرکز بدل شو او کورني عسکر ترې وشړل شول، په کنړ کې هم موږ ګڼ داسې بیسونه او مراکز لرو چې یو وخت د امریکایانو مهم ځایونه وو بیا داخلیانوته سپارل شوي وو او بیا مجاهدینو فتحه کړي دي.

په دې اساس نو د کورنیو عسکرو د پیاوړتیا تصور سم نه بولم، بلکې هغوی کرها مجبوره شوي چې د امریکایانو تخلیه شوي ځالو ته واستول شي خو دا به وخت لاهم ثابته کړي چې د ساتنې قابلیت او وړتیا یې نه لري او مجاهدین به یې پرلپسې فتحه کوي. ان شاءالله

# د مورچل

# دارالافتاء

مفتي ابوماریه

## الاستفتاء

**محترم مفتي صاحب !** زموږ په سیمه کې د علماوو،مجاهدینو او مجاهدینو ترمنځ اوس دا رواج جوړ شوی دی، چې کله په جهاد کې کوم مجاهدین شهیدان شي او دهغوی مخ او سر داسې زخمي شوی وي چې د کتلو وړ نه وي، نو بیا خلک دهمدې شهیدانو لوی لوی تصویرونه جوړوي په لاس کې یې نیولي وي او د جنازې په مهال یې خلکو ته ورښيي، دغه راز د شهیدانو ډول ډول تصاویر په چوکاټونو کې بند کړي او دفاتحې په وخت یې په مسجدونو کې لګولي وي، ترڅو فاتحې ته راتلونکي خلک یې ویني، نو اوس له تاسو محترم نه پوښتنه داده.

۱ - آیا د شهید تصویر لیدل یو ضروري امر دی؟

۲ – آیا دا افعال شرعا جائز دي او کنه ؟

۳ - که یو څوک ددې افعالو له امله جنازې یا فاتحې ته ورنشي ملامتي ورباندې شته او کنه ؟

۴ - که چیرې د تصویرونو کارول د شهید ورثه وو لپاره ناروا وي آیا شهید ته ورباندې عذاب رسیږي او کنه ؟

لوړې څو پوښتنې که دحنفي فقهې په رڼا کې په تفصیلي ډول ځواب کړئ امید شته چې د ډیرو مسلمانانو د نجات او هدایت سبب به وګرځي.

المستفتي بنده محمدنظیر

الجواب حامدا ومصلیا وبعد: لمړی باید داوپېژنو چې دذي الروح دمنقشو تصاویرودعدم جواز په اړه نږدي ټول مفسرین ،محدثین ،فقهاء اوعلماء متفق دي ، البته ځینو فقهاؤ دسختې اړتیاله امله په ځینو مواردو کې [لکه دپاسپورټ ،جهاد اونور ] دضرورت مطابق دجواز حکم ورکړی دی .

نوځرنګه چې دنني عصر دغه تصاویر دجمهورو علماوو په نزد حرام دي، نو دداسې حرام عمل مرتکب ګنهګار دی ، په شریعت کې دغسې خلکوته تعزیرورکول کیږي ، اوتوبه ایستل ضروري ده.

په اسلامي شريعت کې يوه حرام عمل ته نږدې ورتلل هم منعه شوي دي ،قال الله تعالي : فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ . . الحج ٣٠ ژباړه : نو ځانونه وساتئ له پلیتۍ دبتانو څخه [تصاویر هم دبتانو حکم لري] وقال الله تعالي: وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَن. الآية الانعام ١٥١ ژباړه : اوگناهونو ته مه ورنږدې کيږئ .

في البخاري ٤٠٦\٢ باب من لم يدخل بيتا فيه تصاوير : عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا: أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُ أَنَّهَا اشْتَرَتْ نُمْرُقَةً فِيهَا تَصَاوِيرُ، فَلَمَّا رَآهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ عَلَى البَابِ، فَلَمْ يَدْخُلْهُ، فَعَرَفْتُ فِي وَجْهِهِ الكَرَاهِيَةَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَتُوبُ إِلَى اللَّهِ وَإِلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاذَا أَذْنَبْتُ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا بَالُ هَذِهِ النُّمْرُقَةِ؟» قُلْتُ: اشْتَرَيْتُهَا لَكَ لِتَقْعُدَ عَلَيْهَا وَتَوَسَّدَهَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ أَصْحَابَ هَذِهِ الصُّوَرِ يَوْمَ القِيَامَةِ يُعَذَّبُونَ، فَيُقَالُ لَهُمْ أَحْيُوا مَا خَلَقْتُمْ» وَقَالَ: «إِنَّ البَيْتَ [ص:٦٤] الَّذِي فِيهِ الصُّوَرُ لاَ تَدْخُلُهُ المَلاَئِكَةُ . كذا أخرجه مسلم في اللباس والزينة باب تحريم تصوير صورة الحيوان. . رقم ٢١٠٧

لهذا دشهيد تصوير هم دنورو تصاويرو حکم لري ، دهغه جوړول ، اخستل ،گرځول ، وړل ، ورته کتل له گناه څخه خالي نه دي . اوبل داچې ددې ډول تصويرونو په کتلوکې هيڅ ډول بلکه يوادنی درجه ضرورت هم نشته .

**ددوهمې پوښتنې ځواب** : توحيد داسلام ددين لوی بنياد دی ، اوشرک تر ټولو سترجرم دی ، دغه جرم دبتانو په ذريعه سره سرته رسيدو ،زموږ جمهورو علماؤ تصويرونه هم دبتانو په حکم کې داخل کړي دي ، نو په الهي اونبوي کلام کې چې څومره دبتانو ،مصورينو اومشرکينو غندنه شوي هغه دتصاويرو جوړونکو ، گرځونکو ، اواحترام کونکو ته هم ورشامله ده .[البته دسخت ضرورت استثناء دغه حکم نه لري .]

وفي البخاري ٤٠٦\٢ عن عائشةَ رضي الله عنها قالت: لمَّا اشتكى النبيُّ – صلى الله عليه وسلم – ذكَرَتْ بعضُ نسائِه كنيسةً رأَينَها بأرضِ الحبشةِ يقالُ لها ماريَةُ، وكانتْ أُمُّ سلَمَةَ وأُمُّ حَبيبةَ رضي الله عنهما أَتَتا أَرضَ الحبشةِ، فذكَرَتا مِنْ حُسنِها وتصاويرَ فيها، فرفَع رأسَه فقالَ:أولئكَ إذا ماتَ منْهمُ الرجلُ الصالحُ بنَوْا على قبرِهِ مسجداً ثم صوَّروا فيهِ تلك الصورةَ، (وفي روايةٍ: الصوَرَ) أولئكَ شِرارُ الخلقِ عندَ الله [يومَ القيامة] .

وفي تكملة فتح الملهم ١٥٨\٤ ومن اجل هذه الاحاديث والاثار ذهب جمهورالفقهاء الى تحريم التصوير واتخاذ الصورفي البيوت سواء كانت مجسمة لها ظل اوكانت غيرمجسمة ليس لها ظل

وفي ردالمحتار ٥٠٢\٢ قال في البحر: وفي الخلاصة وتكره التصاوير على الثوب صلى فيه أو لا انتهى، وهذه الكراهة تحريمية. وظاهر كلام النووي في شرح مسلم الإجماع على تحريم تصوير الحيوان، وقال: وسواء صنعه لما يمتهن أو لغيره، فصنعته حرام بكل

حال لأن فيه مضاهاة لخلق الله تعالى، وسواء كان في ثوب أو بساط أو درهم وإناء وحائط وغيرها اهفينبغي أن يكون حراما لا مكروها إن ثبت الإجماع أو قطعية الدليل بتواتره اهكلام البحر ملخصا.

**ددريمي پوښتني ځواب** : فاتحې یاتعزیې ته ورتلل سنت اومستحب کار دی ؛خوکه چېرته په دغه ځای کې دغه ډول منکرات موجود وي باید ځوک ورنشي . اونه هم په نه ورتلو ځوک دالله تعالی په وړاندي ملامت ګڼل کیږي ، اود ناروایه ترک کې باید دیوه مسلمان په حیثیت دچادملامتی پروا ونه کړي : دشریعت په نصوصو کې موجود دي : لایخافون لومة لائم ، دچادملامتی پروا به نلري .

حضرت عمر رض اوحضرت ابن عباس رض به دتصاویرو ځای ته له ورتلو څخه ډډه کوله .

وفي الفقه الحنفي ١١\٣٢٩ وقال عمر رض انا لاندخل كنائسكم من اجل التماثيل التي فيها صور . وكان ابن عباس رض يصلي فى البيعة الافيها تماثيل ، وقال عليه الصلوةوالسلام في اهل البيع اولئک قوم اذامات فيهم العبدالصالح اوالرجل الصالح بنوا عليه قبره مسجد ا وصوروا فيه تلک التصاوير اولئک شرار خلق الله عند الله .

دڅلورمې پوښتني ځواب : که چېرته دشهید له اولاد یادهغه له نږدي اقاربو څخه ځوک دغه عمل سرته رسوي نو په دې مسئله کې دعلماؤ اختلاف دی چې میت ته داقاربو په یوه ګناه سره سزاء ورکوله کیږي اوکنه؟ صحیح قول دادی چې شهید ته په دغه عمل سزاء نه ورکوله کیږي ، مګرکه یې په دغه عمل توصیه کړې وه نوبیا به معذب وي.

وفي البناية شرح الهداية ٣\٢٦٢ بحث قلع الحشيش من القبور " وفي فتاوى الظهيرية ": وهل يعذب الميت ببكاء أهله؟ قال عامة العلماء: لا يعذب، والحديث محمول على الوصية .

وفي البحرالرائق ٢\٢٠٧ بحث الصلوة على الميت في المسجد : وهل يعذب الميت ببكاء أهله عليه فقال بعضهم يعذب لقوله - عليه الصلاة والسلام - «إن الميت ليعذب ببكاء أهله» وقال عامة العلماء لا يعذب لقوله تعالى {ولا تزر وازرة وزر أخرى} [الأنعام: ١٦٤] وتأويل الحديث أنهم في ذلك الزمان كانوا يوصون بالنوح عليهم فقال - عليه الصلاة والسلام - ذلك اهـ

**دفتوی خلص :**

شهید دالله تعالی په وړاندي ډيرلوی مقام لری ، اوشهید چې څومره دکفارو له لاسه خوږ شي هغومره یې ثواب اودرجات زیاتیږي، شهادتونه اوقربانی په اسلامي امت کې دکفارو اودهغوئ دشومو اهدافواو اعمالو ،همداراز دفسق اوګناهونو دله مینځه وړلو په لامل رامینځته کیږي . نوښه به داوي چې دشهادت دفاتحي ،تعزیې ، جنازي اونورمراسم له دغه ډول منکراتو څخه پاک وي ، له شک پرته تصویر جوړول ګناه ده ، اوکه دغه ګناه دشهید په تصویر سره سرته رسیږي ، دهغه له مبارک جسد سره ښوودل کیږي ، دهغه په جنازه کې وړل کیږي ، دهغه

دفاتحي په مراسموکې لګیږي ، اوترټولو په مقدس مقام مساجدوکې شوودل کیږي نو دابه یوه سخته ګناه وي ، دشهید اودشهادت دمقام یوډول توهین هم ګڼل کیږي .

په وړاندي حدیث کې ښکاره شوه چې دغه عمل اصلا دیهودانو اونصاراو ؤ ځکه دهغوئ چې به یونیک تن مړشونودوئ به یې تصاویر جوړول . اوخلقوته به یې ښوودل .

نومسلمان به عموما اومجاهدین به خصوصا له دغه ډول ګناه او عمل څخه په کلکه ځان ساتي .اونوربه هم له دغه عمل څخه راګرزوي .

والله تعالی اعلم

**دقومي جوړښتونو او اتحادیو په اړه**

**ډیر محترم مفتي صیب**

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

دلته یوچا پوښتنه کړي،وایې : دې قومي جوړښتونو کې ګډیدل څنګه دي؟ قوم مو فیصله کړي ده، چې دفلان قوم سره به په مړي ژوندي کې ولاړ یو، حال دا چې زموږ له یوه قوم سره غټه بدي ده ،ناحقه مړي شوي دي، اواوس یو دبل پر ضد پیسي سره مصرفوو،اوډول ډول تاوانونو ته غاړي ږدو ! که په داډول جوړښتونو کې ګډون نارواوي ، نو که یوقناعت بخشه ځواب راکړئ، ترڅو نور ورونه هم له دې کاره را وګرځوم

والسلام مع الاحترام ستاسو ورور عبدالمالک .

الجواب حامدا ومصلیا وبعد: په ذکرشوي صورت کې : دغه ډول تړونونه داسلام داصولو څخه خلاف ،او له شریعت څخه مخالف دي ، دغه ډول تړونونو کې ګډیدل ګناه اولوی جرم دی . له داسې جوړښتونوڅخه ځان ایستل اوتوبه کول ضروري ده ، بلکې دیوه مسلمان په حیث دهر چا داوظیفه ده، چې نورهم له داډول ناوړه عمل څخه راوګرځوي .

۱= قال الله تعالي : وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ (۲) المائده دنیکي اوتقوی په کارونوکې به له یوه بل سره مرسته کوئ ، په ګناه اوظلم سره به دیوه بل تعاون نه کوئ ، له الله تعالی څخه وویریږئ ، کنه الله تعالی ډیرسخت عذاب ورکونکی دی .

۲= وقال الله تعالی : کنتم خیرامة اخرجت للناس تآمرون بالمعروف وتنهون عن المنکر .الآیة .

ژباړه : تاسو هغه بهترینه ډله یاست !چې دخلکو داصلاح لپاره میدان ته راوتلي یاست ،تاسو به دنیکي ښوونه کوئ اودبدو څخه به خلګ منعه کوئ .

۳= ولاتقربوا الفواحش ماظهر منها ومابطن . الانعام ۱۵۱ ګناهونوته مه ورنږدي کیږئ ؛ ښکاره وي اوکه پټ .

٤= عن أبي هريرة، قال: قال رسولُ الله -صلى الله عليه وسلم-: "كُل المسلمِ على المُسلمِ حرام: مالُهُ،

وعِرضُهُ، ودَمُه، حسبُ امرئٍ من الشرِّ أن يحقـرِ أخـاهُ المُسلم".

ژباړه : دهرمسلمان مال ،حيثيت اووينې په بل مسلمان حرامې دي ،ديوه مسلمان لپاره داشر بس دى چې ديوه بل مسلمان تحقيروكړي .

٥= عن أبي هريـرة، أن رسـولَ الله – صـلَّى الله عليه وسـلم – قـال: "سـتكونُ فِتنـةٌ صـمَّاءُ بكمْـاءُ عَمياءُ، مَنْ أشرَفَ لها استشرفَتْ له، وإشرافُ اللسـانِ فيها كوقوعِ السيفِ" .ابوداود .

ژباړه : رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايـل : ژر به يوه گونگه ،كڼه ، اوړنده فتنـه رامېنځ تـه شي ،څوک چې وروړاندې شي هغه به ځان ورتـه رابـكاره كړي ،اوډژبې استعمال به دتوري په څېر گڼل كيږى .

٦=عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُـولُ الله- صَـلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "لَا يَحْقِرْ أَحَدُكُمْ نَفْسَهُ" قَالُوا: يَـا رَسُولَ اللهِ كَيْفَ يَحْقِرُ أَحَدُنَا نَفْسَهُ؟ قَالَ: "يَرَى أَمْـرًا، لِلهِ عَلَيْهِ فِيهِ مَقَالٌ، ثُمَّ لَا يَقُولُ فِيهِ، فَيَقُـولُ اللهُ عَـزَّ وَجَلَّ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ: مَا مَنَعَكَ أَنْ تَقُولَ فِي كَذَا وَكَذَا؟ فَيَقُولُ: خَشْيَةُ النَّاسِ، فَيَقُولُ: فَإِيَّـايَ كُنْـتَ أَحَـقَّ أَنْ تَخْشَى"

ژبـاړه :يـودې هـم خپـل ځـان خـوار نـه گڼـي ،پوښتنه وشوه ،څرنگه به يوهم ځان خوارنـه گڼو؟ اى دالله ج رسـوله ! هغــه ص وويــل : يــوه خــبره بــه ووينې دالله تعالى لپـاره بـه دويلـو ځـاى وي مگـردى هلته څه ونه وايـې ،نـوالله تعـالى بـه دقيامت پـه ورځ ورته ووايې : څه وجه وه چې په هغه اوهغه امركې دي هـيڅ نـه ويـل ؟ دغـه بنـده بـه ورتـه وايـې چـې دخلگودويري له امله مي څه نشو ويلاى .نوالله تعالى بـه ورتـه ووايـې : چـې تـه خوبـه پـه حقـه يـواځې لـه ماويريدې .

في صحيح ابن حبـان :٢١٢\١٠ عَـنْ شُـعْبَةَ بْـنِ التَّوْأَمِ أَنَّ قَيْسَ بْنَ عَاصِمٍ سَأَلَ النَّـبِيَّ صَـلَّى الله عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْحِلْفِ فَقَالَ: "لَا حِلْفَ فِي الْإِسْلَامِ"

قال ابن الأثير في "النهاية" ١/ ٤٢٤ – ٤٢٥: قـوله: "حالف" أي آخى بينهم وعاهد، وأصل الحِلف: المعاقدة والمعاهدة على التعاصد والتساعد والإنفـاق، فمـا كان منــه في الجاهليــة على الفــتن والقتــالِ بــين القبائــل والغــارات، فــذلك الذي ورد النــهيُ عنــه في الإســلام بقــوله – صــلَّى الله عليــه وســلم –: "لا حِلــف في الإسلام"، وما كان منه في الجاهيـة على نصرِ المظلـوم، وصلةِ الأرحام، كحلف المُطيَّبين ومـا جـرى مجـراه، فذلك الذي قال فيه – صلَّى الله عليه وسلم –: "وأيمـا حلف كان في الجاهلية لم يزده الإسلام إلا شدة" يريد من المعاقدة على الخير، ونصرةِ الحـق، وبـذلك يجتمـع الحديثان، وهذا هـو الحلـف الذي يقتضـيه الإسـلام والممنوع منه ما خالف حكم الإسلام.

وفي عمـــدة القـــاري ٦٠\٢٥ ورد لَا حلــف فِي الْإِسْلَام؟ قلت: هَذَا على الْحلف الَّذِي كَانَ فِي الْجَاهِلِيَّة على الْفِتَن والقتال والغارات وَنَحْوهَا، فَهَذِهِ هِيَ الَّتِي نهى عَنْهَا.

وفي المرقات ٦\٢٢٨٦٦ كتاب الديات وعن عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده قال: خطب رسول الله صلى الله عليه وسلم عام الفتح ثم قال: «أيها الناس إنه لا حلف في الإسلام وما كان من حلف في الجاهلية فإن الإسلام لا يزيده إلا شدة المؤمنون يد على من سواهم ... رواه ابوداود . فقال (أيها الناس إنه لا حلف) أي لا إحداث للمعاهدة بين قوم......... وكان أهل الجاهلية يتعاهدون على التوارث والتناصر في الحروب، وأداء الضمانات الواجبة عليهم وغير ذلك فنهى النبي صلى الله عليه وسلم عن إحداثه في الإسلام، .... وتوضيحه ما قال التوربشتي ولخصه القاضي: كان أهل الجاهلية يتعاهدون فيتعاقد الرجل مع الرجل ويقول له: دمي دمك وهدمي هدمك وثأري ثأرك وحربي حربك، وسلمي سلمك....... وذكر في النهاية وجها آخر حيث قال: أصل الحلف المعاقدة والمعاضدة على التعاهد والتساعد والإنفاق، فما كان منه في الجاهلية على الفتن والقتال والغارات، فذلك الذي ورد النهي عنه في الإسلام بقوله: (لا حلف في الإسلام) وما كان منه في الجاهلية على نصرة المظلوم، وصلة الأرحام ونحوها فذلك الذي قال فيه وأيما حلف كان في الجاهلية لم يزده الإسلام إلا شدة .

والله تعالى اعلم وعلمه اتم

## قوي عزم او ټينګ ايمان

قلم په لاس کتاب تر خنګ توره تيره لرمه
پښتون زلمی یم د افغان د ننګ شمله لرمه

نه مې ټايي، نه سرتور سر، نه مې پتلون خوښېږي
شدل څواني ، د ننګ پګړۍ، ښکلې جامه لرمه

چې نه وېرېږم ، نه ډارېږم د غليم په تهديد
زه قوي عزم ټينګ ايمان او عقيده لرمه

اوس مې عادت دی له مرګي سره تل لوبي کوم
ځان خپل هدف ته رسوم دا اراده لرمه

په ناموس ننګ په وطن جنګ کوم غورځنګ کومه
نذير طه نذير طه دا فيصله لرمه

## په تېر میلادي (۲۰۱۴)ز کال کې

## د دښمن د تلفاتو او زیانونو دقیقه احصایه

د پخوانیو کلونو په څیر تېر کال هم د دښمن لپاره د مجاهدینو لخوا سخت ځپونکی کال وو، دغه کال چې د الفاروق جهادي عملیاتو دریم ثلث او د خیبر عملیاتو ددوه لومړني ثلثونه په کې تېر شول، د دښمن لپاره دومره له ځاني او مالي زیانونو ډک وو چې پخوایي ساری نه وو لیدل شوي.

په دې کال کې اگر که د پخوا په نسبت د بهرنیو عسکرو تلفات کم شوي وو، ځکه هغوی د هیواد له ډېرو سیمو څخه پسې اخیستل شوي وو او په کومو ځایونو کې چې اوسیدل هم په گرځیدو را گرځیدويي بندیز لگولی وو او پرځاي یې داخلي مزدور غلامان د مرگ کومې ته ورکړي وو.

په دغه کال کې د غلام دښمن په درنو تلفاتو باندې امریکایانو هم اعتراف وکړ او د پخوا په نسبت یې سږ کال د مزدورو عسکرو لپاره خونړی وباله، هغوی د خپلو سانسور شوو شمیرو په اساس بیاهم ومنله چې په تیر کال کې له ۵۰۰۰ څخه زیات کورني عسکر وژل شوي دي، البته دغه احصایه او شمیر دهغو ارقامو په اساس دي چې بهرنیو ته یې معلومات شوي وي او یا دکابل اداري غوښتي وي چې له بهرنیو سره یې شریک کړي، خو دا احصایه کله هم تامه او پوره نه ده او نه یې د هیواد ټولې پیښې په بر کې نیولې دي.

د اسلامي امارت دمجاهدینو لخوا تیر کال په دښمن د بریدونو لمن څو برابره پراخه شوې وه او د هیواد ډېرې سیمې د دښمن له ولکې بشپړې ووتې.

د هیواد د جنوب او شرق په څیر سږ کال د هیواد شمال هم د دښمن لپاره سور تنور وو او ښه درانه تلفات یې پکې ولیدل، د ډېرو پراخو سیمو په ترڅ کې څو ولسوالۍ هم له دښمن څخه په ټولیزه توگه تصفیه کړل شوې چې اصلا دښمن په کې وجود نلري، د لسهاوو نورو ولسوالیو صرف مرکزونه لکه محصورې شوې پوستې د پوځي لزوم دید له مخې د دښمن په ولکه کې دي، خو پراخ اطراف او سیمه یې د مجاهدینو د آزاد فعالیت ډگر دي.

په لاندې ډول د دښمن د تلفاتو، زیانونو او خساراتو هغه دقیقه احصایه راخلو چې د اسلامي امارت د مجاهدینو لخوا ترسره شوي، او بیا یې په ډېر دقت او له څو فلترونو څخه تر وتو وروسته راپورونه تر موږ رسیدلي او د باور وړ بلل شوي دي.

ـ په تير ۲۰۱۴م کال کې په دښمن ټول ټال (۱۵۵۵۴) بريدونه ترسره شوي چې په اوسط ډول هره ورځ تقريبا ۴۱ بريدونه کيږي.

ـــ ددغه کال په اوږدو کې دبهرني دښمن (۸۱۲) تنه وژ ل شوي (۳۶۴) نور ټپيان شوي دي، چې په اوسط ډول هره ورځ تقريبا (۳) تنه مړه او هره ورځ تقريبا (۱) تن ټپي شوي دی.

ـ په تير کال کې د داخلي عسکرو، پوليس او اربکيانو د وژل شويو دقيقه شميره (۲۲۵۶۲) ده او ټپيان يې (۱۴۸۰۷) دي، چې په اوسط ډول هره ورځ تقريبا (۶۱) تنه وژل شوي او هره ورځ (۴۰) تنه ټپيان دي.

ـ په تير کال کې د عملياتو په مهال د ټول هيواد په سطحه د دښمن (۷۶۴) صرف قومندانان او لوړپوړې کسان وژل شوي دي، چې په اوسط ډول هره ورځ (۲) تنه قومندانان په وژل شوو کې شامل دي.

ـ په تير کال کې د ګډ د ښمن (۵۰۶۳) نظامي وسائط (ټانکونه، رينجر موټر، اکمالاتي تيلر او ټانګر او نور نظامي موټر) له منځه تللي دي، چې په دې توګه هره ورځ د دښمن (۱۳/۸۷) وسائط منهدم دي.

ـــ په تير کال کې د بهرني او کورني دښمن د رانسکورو شوو الوتکو او هليکوپترو شمير (۲۶) بالو نه ده.

ـ همدا راز د تير کال په جهادی عملياتو کې (۹۳۰) تنه مجاهدين هم د شهادت لوړ مقام ته رسيدلي او (۱۲۵۱) نور ټپيان شوي دي، چې په اوسط ډول هره ورځ (۲) تنه مجاهدين شهيدان او هره ورځ (۳) تنه هم ټپيان دي.

ـــ د مجاهدينو (۵۰) وسائط هم له منځه تللي .

ـ همدارنګه د تير کال په اوږدو کې د مجاهدينو له حقيقت سره ددښمن د افرادو اشنايي او د هغوی له ليکو سره پيوسته کيدل ورځ تر بلې مخ پورته روان وو او د اسلامي امارت مجاهدينو د ۲۰۱۴ ميلادي کال په جريان کي په دغه برخه کي ډېري ښې لاس ته راوړني لرلي ، په اجمالي ډول د ۲۰۱۴ ميلادي کال په اوږدو کي د اسلامي امارت د جلب او جذب کمېسيون د مسؤلينو د نه ستړي کيدونکو هلو ځلو او د دښمن د افرادو د حقيقت درکولو په نتيجه کې ۳۵۴۵ تنه د دښمن په ليکو کي ولاړ خلګ د مجاهدينو له ليکو سره يو ځای شول . چي د تسليم شوو افرادو تفصيل د هغو له نوم ، د پلار نوم ، ولسوالي او دولايت له نوم سره هره مياشت د اسلامي امارت د ارشاد جلب او جذب کمېسيون لخوا خپريږي .

دافغانستان اسلامي امارت

دفرهنګي چارو کميسيون

۱۴۳۶/۳/۱۲هـ ق

۱۳۹۳/۱۰/۱۳هـ ش ـ ۲۰۱۵/۱/۳م

**يادونه**: پورته احصائيه دهغو خبرونو او راپورونو په بنا ترتيب شوې چې پر دښمن له عملياتو وروسته وخت په وخت دمجاهدينوله لوري داسلامي امارت د ويانډويانواو همداراز دولايتونو دخبري نماينده ګانو په واک کې ورکړل شوي ، او له پوره تحقيق او کره توب وروسته د الاماره په رسمي ويب پاڼه کې نشر شوي دي.

سید سعید

# جنګي جنایتونه

## (دسمبر)

دتېر (۲۰۱۴ز) کال دډسمبر دمیاشتي په لومړۍ نیټه اشغالګرو عسکرو دافغان پوځیانو په ملتیا دننګرهار ولایت دخوګیانو ولسوالۍ دوزیرو سیمه کي دچاپې پر مهال دوه تنه ولسي وګړي شهیدان کړي او اتیا (۸۰) تنه ولسي وګړي یې دبندیانو په توګه له ځان سره وړي دي .

دډسمبر په ۳ مه دبدخشان ولایت دجرم ولسوالۍ په شپچان سیمه کي داخلي عسکرو دوه ځوانان شهیدان کړي دي .

دډسمبر په ۴مه اشغالګرو او داخلي عسکرو د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ په مملي سیمه کي دچاپې پر مهال څلور تنه ولسي وګړي شهیدان کړي او لس نفره یې بندیان کړي دي .

دډسمبر په ۴ مه د لغمان ولایت د علیشنګ ولسوالۍ په کوټالي سیمه کي اربکیانو دوه ملکي وګړي له موټره کښته کړې ، یو یې شهید کړی او بل یې ژوبل کړی دی .

دډسمبر په ۴ مه دبدخشان ولایت د یمګان ولسوالۍ په مربوطاتو کي اربکیانو یو سپین ږیری شهید کړی دی .

دډسمبر په ٦ مه دکندهار ولایت دهوایې ډګر مخته پر غځیدلي سړک یرغلګرو عسکرو دوه تنه ولسي وګړي شهیدان کړ ي دي .

دډسمبر په ۸مه دبادغیس ولایت د بالامرغاب ولسوالۍ د جوی کنج په سیمه کي داخلي عسکرو دطالبانو سره تر جګړې وروسته شپیته تنه ملکي هیوادوال دسپین ږیرو او ماشومانو په ګډون بندیان کړي او وهلي دي .

دډسمبر په ۹ مه دهلمند ولایت دګریشک ولسوالۍ په کلای کز سیمه کي دکورنیو عسکرو دهاوان په برید کي دوه دوکانداران شهیدان شوي او یو بل تن ژوبل شوی د ی.

دډسمبر په ۱۰مه د پروان ولایت دسیاګرد ولسوالۍ په دره سیدان جمبت خیلو کلي یرغلګرو



ځواکونو د واليبال په ميدان بمبار کړی ، په بمبار کي پنځـه تنـه زده کونکي (بورجـــان ،وثيــق، خيـــرالله، اسماالله او علـي ګـل) شـهيدان شوي دي .

دږسـمبر پـه ۱۴ مـه دکنـــدهارولايت د خـــاکريز ولسوالۍ د باغکي پـه سيمه کي دداخلي عسکرودهاوان پـه بريـد کي دوه ولسي وګړي شهيدان شوي دي .

دږسمبر په ۲۱مـه دغزني ولايـت د شلګر ولسوالۍ پـه غبرګون کلي کي اربکيـانو د حاجي اسـحاق کـورنۍ پـه زور لـه خپلـي کـلا ايسـتلې او پوسته يې پکي جوړه کړې ده.

دږسمبر پـه ۲۱مـه دميـدان وردګ ولايـت دنرخ ولسوالۍ په خسر کلي کي د کورنيو عسکرو پـه ډزو کي دوې ښځي او يـو ماشوم شهيد شوی دی.

دږسمبرپه ۲۱ مـه دغزنـي ولايـت دګيـرو ولسوالۍ په شيله کلي کي اربکيـانو د عبدالمحمد پـه نـوم يو کليـوال لـه کوره ايستلی او شـهيد کړی دی.

دږسمبر پـه ۲۲مـه دننګرهـا رولايـت دغنـي خېلو ولسوالۍ پـه ۲۷ ويالې سيمه کي اربکيـانويو سړی او يوه ښځه شهيده کړې ده .

دږسمبر پـه ۲۳ مـه دکاپيسا ولايت دتګاب ولسوالۍ پـه بروتيـانو سيمه کي دداخلي عسکرو دهـاوان پـه بريـد کـي يـوه ښځه او درې ماشـومان شهيدان شوي اودرې زنانه اوځلور کوچنيـان ژوبـل شو ي دي .

دږسـمبر پــه ۲۳ مــه دپکتيکــا ولايــت دخوشامند ولسوالۍ په جمجمو کلي کي پوليسو يـو سپين ږيری ( حاجي سيد )شهيد کړی دی .

دږسمبرپه ۲٦مه دلوګر ولايت د بر کي بـرک ولسوالۍ په ابجـوش سيمه کـي پـر يـوه دوه پوړيزه ودانـۍ ديرغلګروپـه بمبـار کي پنځـه تنـه ملکـي هيوادوال شهيدان شوي اوپنځـه نفره ژوبل شوي دي ،په دغه پيښه کي ذکرشوې ولسي مرګ ژوبله حکومتي چارواکي هم تائيدوي .

د ډسمبر په ۲۶مه دپکتیکا ولایت د یحی خیل ولسوالۍ په ګوډلو کلي کي اربکیانو یوه دیني مدرسه (نجم المدارس)او د مدرسې د استادانو کورونه ویجاړ کړي دي.دعیني شاهدانو له قوله اربکیانو چي پرمدرسه برید وکړلومړی یې ټول شیان خپلي پوستې ته تري یو وړل اوبیا یې مدرسه ورانه کړه، اربکیانو دمدرسې مهتمم مولوي محمد یعقوب آخندزاده او نور استادان ګواښلي چي سیمه پرېږدي کنه خیر به یې نه وي .

دډسمبر په ۲۸ مه دکندهارولایت د میوند ولسوالۍ په ګرماوک سیمه کي دداخلي عسکرو په یو راکټي برید کي درې کوچنیان شهیدان شوي دي .

دډسمبر په ۲۸ مه د میدان وردګ ولایت د نرخ ولسوالۍ په عمر خېل سیمه کي دداخلي عسکرودهاوان په ډزوکي دوه ملکي وګړي شهیدان شوي اوپنځه تنه ټپیان شوي دي .

دډسمبر په ۲۹ مه دارزګان ولایت د مرکز (ترینکوټ)اړوند د پای ناوې دتنګي په سیمه کي داخلي عسکرودوه ۱۳کلن ماشومان شهیدان کړي دي، دځایي خلکو په وینادغه دواړه ماشومان پنځلس ورځي مخکي عسکرو له ځان سره وړي ووچي دادی اوس یې مړي وموندل شول .

دډسمبر په ۲۹ مه دهلمندولایت دګرشک ولسوالۍ د کلایې ګز دحاجي پیر محمد اکا په کلي کي دداخلي عسکرو دچورلکو په برید کي یوه ښځه او دوه ماشومان شهیدان شوي اویو کوچنی اویوه میرمنه ژوبله شوې ده .

دډسمبر په ۳۰ مه دهلمندولایت د موسی کلا ولسوالۍ په توغي سیمه کي کورنیو عسکرو یوملکي وګړی (قدرت الله ولد حاجي محمد )چي مسجد ته روان ؤشهید کړی دی .

دډسمبر په ۳۱مه دجوزجان ولایت دقوشتیپې ولسوالۍ دعربو په سیمه کي داخلي عسکرودطالبانو سره ترجګړې وروسته دوه ماشومان شهیدان کړ ي دي .

دډسمبر په ۳۱مه دهلمند ولایت دسنګین والسوالۍ دساروان کلا په باینزو سیمه کي دداخلي عسکرو توغندي دمحمد اکا پر کور چي دزوی واده یې ؤلګیدلي ، په دغه برید کي شپږ پنځوس تنه ولسي هیوادوال چي زیاتره یې ښځي او ماشومان دي شهیدان شوي او تر سلو تنو ډیر ټپیان شوي دي .دهلمند حکومتي چاراکو منلې چي دغه توغندوېي بریدددوی له لوري شوی دی .

مأخذونه :[بي بي سي راډیو،ازادي = ،افغان اسلامي اژانس ،پژواک =،خبریال ویبپاڼه، لراوبر = ،نن ټکی اسیا= اوبینوا=].

# د دعوت، ارشاد، جلب او جذب کمیسون

## د ډسمبر د میاشتي راپور

دروان (۲۰۱۴م) کال د ډسمبر په میاشت کې هم د تېرو میاشتو په شان د اسلامي امارت د دعوت، ارشاد، جلب او جذب کمیسیون په هڅو او ځانګړې مجاهدینو په ملاتړ د افغانستان په مختلفو ولایاتو کې ۲۳۸ تنه چې د کابل اداري اړوند بېلا بېلو ارګانونو کې په کاربوخت وو د حقایقو په درک کولو د دغه فاسد او ګوډاګي رژیم څخه راووتل او د اسلامي امارت د مجاهدینو سره یوځای شول.

ګرانو لوستونکو دا هم د تسلیم شوو کسانو تفصیلي میاشتني ارقام:

کونړ: ۱ تن عسکر
ننګرهار: ۲۹ تنه عسکر
پکتیکا: ۱۹ تنه عسکر
خوست: ۲ تنه عسکر
بغلان: ۱ تن عسکر
جوزجان: ۴ تنه عسکر
لغمان: ۱تن عسکر
لوګر: ۴ تنه عسکر
غور: ۱ تن عسکر
سرپل: ۴۹ تنه عسکر
زابل: ۶ تنه عسکر
کندهار: ۱۱ تنه عسکر
میدان وردګ: ۷تنه عسکر
دایکنډي: ۶ تن عسکر
غزني: ۱۶ تنه عسکر
هلمند: ۲۳ تنه عسکر
فراه: ۱۰ تنه عسکر
فاریاب: ۳ تنه عسکر
ارزګان: ۲۴ تنه عسکر
میدان وردګ: ۲تنه عسکر
هرات: ۹ تنه عسکر

او په بادغیس ولایت کې ۱۵تنه بااحساسه عسکر او منسوبین د اسلامي امارت د اتلو مجاهدینو سره یوځای شول

بادرکه هیوادوالو مختلفه النوع لویې اووړې وسلې، مخابرې، وسایط اویوزیات شمېر مهمات مجاهدینو ته وسپارل .

دکابل دمنفوررژیم څخه راجلا شوو او د اسلامي امارت له مجاهدینو سره یوځای شووهیوادوالووعده وکړه چې نوربه دخپل ددین اووطن دخارجي اوداخلي مزدورانو سره هیڅ راز تعلق نه ساتي، دخپل مظلوم ولس اومجاهدینو وروڼو سره به همکاري کوي، ترڅولوی خدای جل جلاله ژرترژره زموږ له ویاړلې خاوري څخه د کفر، فسق، اشغال، فحشاء او ګمراهیو کرغیړن ټغرټول کړي اودمسلمانانودخوښي یوسوچه اسلامي واکمني رامنځته کړي چې دټول افغانان پرې راټول شي .

داسلامي امارت ددعوت، ارشاد، جلب اوجذب کمیسیون مشرتابه دوی ته هرکلي ووایه، انعامونه اوجایزې یې ورکړې اوددوی همدانیک اقدام یې ډیروستایه چې دیرغلګرواولاسپوڅي رژیم څخه یې راووتل اودافغانستان اسلامي امارت دمجاهدینو سره یې خپل پیوستون اعلان کړ .

دافغانستان اسلامي امارت دګران هیوادڅخه دوحشي یرغلګرو دشړلو او داسلامي اوملي نظام درامنځته کولو په موخه دران سپېڅلی مقاومت په لړکي دنظامي فعالیت ترڅنګ سیاسي، فرهنګي، تعلیمي اودعوتي هڅي هم ګړندۍ کړي دي داسلامي امارت غښتلي مجاهدین دپراخوپوځي لاسته راوړنوڅخه علاوه هره میاشت دهیوادپه بیلا بیلو ولایتونو او ولسوالیوکي ددعوت او ارشاد کمیسیون په هڅولکه پورته چې ذکرشول دکابل اداري څخه په سلهاووتنه کارمندان راوزي اوداسلامي امارت غیږي ته پناراوړي .

دعوت او ارشاد کمیسیون



# افغان لیکوال اوشناند ښاغلی استاد شپونکی

## له مورچل سره په مرکه کې :

امریکایان په افغانستان کې خپله جګړه نه دروي، بلکې یوازې په جګړه کې خپل رول ته تغییر ورکوي او جګړه پداسې شکل ډیزاین کوي، چې مالي خساره یې کمه شي، او ځاني خساره یې دوئ ته هېڅ متوجه نه وي.

**مورچـــــل:** دښـــکیلاکګرو پـــرخلاف روان جهـادي مقاومـت ،یاپـه بـل عبـارت داسـلامي نظام دحاکمیت او دهیواد آزادۍ په جهاد کې دمطبوعاتو او مطبوعاتیانو نقش څنګه ارزوئ؟

**شپونکی:** بسم الله الرحمن الرحیم،

الحمد لله رب العلمین، و الصلاة و السلام علی أشرف الأنبیاء و إمام المجاهدین، وعلی آله و أصحابه ومن سار علی هدیه إلی یوم الدین أجمعین.

لکـه څنګـه چـې نـن د اسـلام د دیـن او د اسـلامي امـت پـه خـلاف ددښـمنانو جګـړه پـه نظامي او فکري دواړو جبهـو کـې پـه پراخ ډول روانه ده ،همداسې په کار ده ،چې لـه اسلام او اسلامي امت څخه دفاع هم باید په پوره قـوت پدې دواړو جبهـو کـې دوام ولري، مجاهـدین د نظامي ډګر اتلان دي، او مسلمان مطبوعاتیان د دې دفاع شعوري او فکري سپاهیان دي، چې ددلیل او منطق په ژبه د اسلام حقائق بیانوي او د دښـمنانو لـه توطیـو څخـه د امـت بچیـان خبروي.

**مورچـل:** تاسـو چې دتېراو اوسـني جهاد دصــحنو شــاهدان یاســت ،دننــي فرهنګــي جهاد( چې لـه خورا سختوشیبوپیل او دایمان پـه قـوت روان دی )لـه پـروني هغـې فرهنګـي جهادسره ،چـې دنړیوالـو مرسـتو نـه برخمن و، څنګـه پرتلنـه کـوئ؟ او اوسـني فرهنګیـان، لـه پرونوهغوپردین ډیرمیین بولئ ،کـه دواړه دیوې سکې دوه مخونه دي؟

**شــپونکی:** د پخـواني جهـاد مطبوعـاتي ادارو او د هغه وخت لیکوالانـو او مطبوعاتیانو پـه خپـل وخـت کـې د جهـاد او اسـلام لپـاره پـه پراخه پیمانه کار کړی وو، هغوئ په خپل وخـت کې د اسلامي نړۍ لـه مطبوعـاتي تجاربو پوره

استفاده وکړه او مسلمان لیکوالان، مفکرین او د عوتگران یې له خپل جهادي بهیر سره ملګري کړای شول، هغوئ په یقینی ډول د تجربې، تخصص او پوهې په ډګر کې تر ننیو ډېر غښتلي او لاسبري وول، او هر یوه یې څوڅو تألیفات درلودل، هغوئ د سختی له ابتلاء سره ښه مقاومت وکړ او په سختو ورځو کې یې د اسلام او جهاد له مصالحو دفاع وکړه، خو کله چې د راحت او نعمت له ابتلاء سره مخ شول او د ډالرو سیلاب ورباندې ورخوشې شو، نو بیا یې ځان ورته ټینګ نه کړ، او تقریبا له یوې مخې د پردیو په غېږ کې ورولویدل.

ننني لیکوالان او مطبوعاتیان هم ښه په شعوري ډول د دښمن مقابله کوي، که څه هم چې د تخصص سطحه یې تر پخوانیو کمه او د ډېرو تحلیلونه یې یو څه ډېر سطحي دي ، خو له پخوانیو سره مقایسه به یې هغه وخت صحیح کېږي، چې دوئ هم د څوکیو، منصبونو، دولت او نعمت له ابتلا سره مخ شي، نو هلته به بیا وکتل شي چې کوم یو یې پر اسلام ډیر مین دي؟

**مورچل:** که د بزم له دنیا نه به لږ څه د رزم دنیاته سرورښکاره کړو،نو دا پوښتنه به لومړی مطرح شي ،چې دا اوس اوس تازه ،چې امریکایانو ددیسمبرپه (۳۱)نیټه (۲۰۱۴)زکال کې ظاهرا جګړه بس کړه ،بیرغونه یې راښکته کړل او اعلان یې وکړ، چې نور به هیواد کې حربي یا جګړه ایز رول نلري، بلکې دداخلي غلامانو روزنه اوتربیه به کوي ،مشورې به ورکوي اوپخپله به نور جنګ نه کوي تاسو دا ډول اشتهارات نمایشي او غربي چال بولئ، که نه دکوم ډول رښتیاوالې تومنه هم پکې شته؟

**شپونکی:** امریکایان په افغانستان کې خپله جګړه نه دروي، بلکې یوازې په جګړه کې خپل رول ته تغییر ورکوي او جګړه پداسې شکل ډیزاین کوي، چې مالي خساره یې کمه شي، او ځاني خساره یې دوئ ته هېڅ متوجه نه وي. امریکایان به کوښښ وکړي، چې جګړه په ملیشه یي او قومي ډول روانه وساتي، او که یې په ټول افغانستان کې جګړه ونه پاللی شوه، نو په هغه صورت کې خو بیا د افغانستان د تجزیې لپاره هم د دوئ فارموله تیاره ده، او هم یې دلته محلي ملګري ورته ملاتړلي ولاړ دي.

**مورچل:** دافغانستان فعلي وضعیت چې ولس پکې دنینو دبټ غوندې ورتیرېږي، ترڅو به دوام کوي؟دې ډول بوګنوونکې حالت ته کوم ډول حل شونی بولئ؟دیوه سوکاله افغانستان راتلونکې ته دې نږدې کې څومره خوشبین یاست ؟

**شپونکی:** د افغانستان د شخړې یوازینی واقعي حل یوازې (جهادي حل) دی، ځکه چې سیاسي حلونه که هغه د ایتلافونو په

شکل کې وي او که د سیاسي مطرحو جهتونو ترمنځ د عمومي جوړ جاړي شکل وي، او که کوم بل ډول حل وي هغه به په یقیني ډول د پردیو په لاس رامنځته کیږي، او په نتیجه کې به یې اسلامپالي او سیکولر جهتونه په یوه داسې ګډوله کې سره را ټولېږي، چې د دې حل قرباني به اسلامي شریعت او د اسلام سیاسي نظام وي. په افغانستان کې سیاسي پلورالیزم (تعدد ګرایي) چې اصلاً په فکري پلورالیزم ولاړ دی، نه چلېږي. په افغانستان کې د پردیو له لوري فکري او سیاسي اسلام دښمنه جهتونه باید د جهاد په زور محوه شي، او د هغوئ په لاس رامنځته شوې فکري، عقائدي او اخلاقي فساد او ویجاړي باید د داسې اصیل اسلامي فکر په رڼا کې له منځه یوړل شي، چې له پردیو سره پیوند نه مني. او که چېرې بیا یو (پیوندي اسلام) او ایتلافي حکومت رامنځته کېږي، نو یقیناً به یې نتیجه تر هغه هم بده راووځي چې د پخوانیو (دیموکرات جهادي) تنظیمونو په لاس په نوي یمو کلونو کې راووته.

**مورچل:** دروان جهاد په باب داسلامي امارت جهادي او سیاسي تګلوری څنګه ارزوئ؟آیا همداسې پکار دی چې دادی ،که نه نور هم باید څه وکړي ،که یې دکولو اراده وکړي دا نامناسب شرایط به اجازه ورکړي ؟

**شپونکی:** د اسلامي امارت جهادي او سیاسي تګلوری ډېر مثالي ندی، خو په اوسنیو حالاتو کې د موجودو اسلامي جهتونو د تګلارو ترمنځ تر ټولو غوره دی. اسلامي امارت باید تر دې وروسته د جګړې تر څنګ په ولس کې سیاسي، فکري، تعلیمي، اجتماعي او اقتصادي فعالیتونو ته هم توسعه ورکړي، اهل خلک ورته پیدا کړي، او هغه تشه په ښه ډول ډکه کړي ،چې په آزادو سیمو کې د موجود رژیم د ټغر د ټولېدلو په صورت کې به منځته راځي. اسلامي امارت که څه هم چې د ټول افغانستان لپاره دی، او پروګرامونه یې هم د ټول هېواد لپاره دي، خو د ځینې منسوبینو او مسؤولینو روحیه یې لا تر اوسه هم (تنظیمي) غوندې ده ،چې لا نورې ډیرې وسعت ظرفی ته ضرورت لری. او که چېرې مطلوبه وسعت ظرفي او د مسؤولیتونو د ښه ادا کولو لپاره ( د کار سړي) پیدا نه کړي، نو ګومان نه کوم، چې د انټرنټ، فیسبوک او میډیایي انقلاب او معلوماتو د سېلاب د زمانې خلک دې، په اسانه له ځان سره روان کړی شي، ځکه چې اوس خلکو ډېر څه ولیدل، او ډیرو بدیلونو ته یې ورپام شوی دی. اسلامي امارت باید نور له خپل پخواني حجمه راووځي، ځکه چې اوس یې له ټول غرب سره جګړه روانه ده، او دا جګړه به لا نور هم په بېلابېلو شکلونو روانه وي، چې یوازې د مدرسې طالب او د مسجد امام به ورته کافي نه وي.

**مورچل:** لویدیځوال چې افغانستان کې فکري جګړه هم پر مخ وړي ،د غربي تهذیب یا ثقافت مزخرف رنګ دومره تیز تصویروي ،ترڅو یې ځینې ناخبره خلک شعاع پسي لاړشي ،خو دلته چې اصل مقابله د دوئ له اسلامي تهذیب سره ده ،آیا پداسې یوه اسلامی ټولنه کې به منحرف شوي لویدیځ تهذیب ته ولسونه پر سپیڅلي اسلامي تهذیب ترجیح ورکړي ؟

**شپونکی:** د غرب د کفري فرهنګ رنګ په رښتیا هم ډیر تېز دی، او همدغه تېزوالي خو یې په اسلامي نړۍ کې تر یوه میلیارد د ډیرو مسلمانانو سترګې اخستې او په ځان پسې یې روان کړي دي، که د مسلمانانو شمېر ته چې تقریبا یو ملیارد او شپږسوه میلونه دی وګورو ،نو و به وینو چې یوازې دوه سوه میلیونه به هم په واقعي ډول د اسلامي فرهنګ او اسلامي ژوند بښې منونکې نه وي، او د دې سبب دا دی چې پر مسلمانانو تپل شوي غرب پلوي نظامونه په خپله مسلمانان له اسلامي فرهنګه اړوي، او په هر لحاظ یې په غرب پورې تړي، نو ترڅو چې دغه نظامونه موجود وي او اسلامي جهتونو په واقعي او عملي ډول ځان د (ښه بدیل) مرحلې ته نه وي رسولی، ولسونه به بیا هم په همدغو نظامونو پسې روان وي، او غربي فرهنګ به خپل فرهنګ ګڼي.

**مورچل:** مورچل مجله دنورومطبوعاتو په منځ کې په کومه کنډه تلئ؟آیاڅه مشورې هم ورته لرئ؟

**شپونکی:** د مورچل مجله د امریکا په خلاف د افغانانو د روان جهاد یو ښه آرشیف او د مجاهدینو د تنویر لپاره یوه ښه نشریه ده، او دا چې نوم یې یو پوځي نوم دی او د مجاهدینو لپاره خپرېږي نو د محتوی په اړه یې مسؤولینو ته زما مشوره داده ،چې سره لدې چې د (مورچل) مجله د روان جهاد د پېښو او جریانونو د تاریخ په توثیق او تدوین کې ستر مسؤولیت ادا کوي ،خو بیاهم (مورچل) لکه چې نوم یې ښکاري یوه (عسکري) مجله نه بریښي.او دا ځکه چې د مجلې د مضامینو په برخه کې پوځي مضامین یا نشته، او یا هم په ډېر سطحي ډول کله ناکله ورکې یو څه راغلي وي.

د مجلې د مضامینو په برخه کې زیاته برخه فقهي، عمومي دیني، تاریخي او سیاسي مضامین وي، او دا پداسې حال کې چې د اسلامي امارت فرهنګي کمیسیون د همدغه ډول مضامینو لپاره څو نورې مستقلې مجلې لکه (څرک)، (شهامت) او (حقیقت) هم لري.

ښه به دا وي چې د(مورچل) مجله لکه چې له نامه یې ښکاري، باید یوه پوځي تعلیمي مجله وي، او ډېر اهتمام یې د اسلام پر پوځي

تاریخ، د اسلامـ پر پوځي فاتحینو او د هغوئ پر جنګي کارنامو، پر پوځي، امنیتي اواستخباراتي علومـو او فعـالیتونو، پـوځي اسـتحکام، د عسـکري پیښـو او جنګـي عملیـاتو پـر پـوځي تحلیل، په ولس کې د مقاومت د فرصتونو او وړتیـاوو پـر پیـدا کولـو او غښـتلي کولـو، مجاهـدینو تـه د جنګـي تکتیکـي او تخنیکـي مهارتونو په ورښودلو، د دښمن پر هـر اړخیزې پېژنـدګلوی، د دښـمن د جنګي او ستراتیژیکو انګېزو او مقاصدو پر تشخیص، په هېواد کې د دښمن د داخلي ملګرو پر معرفی او د هغوئ د هویـت او د مقاصـدو د ماهیـت پـر تشریـح، مجاهدینو ته ددوئ د قوت او ددښمن د ضعف د نقطـو پـر ورښـودلو، د رواني (روحـي) جګړې پر اسالیبو او د تبلیغاتي او فکري جګړې لپاره په مجاهدینو کې د وړتیا وو پر پیدا کولو او پاللو وي.

ددغـه ډول مضـامینو او مـوادو د برابرولـو لپـاره بایـد لـه پـوځي مـاهرینو، عسـکري سایکالوژستانو، د عسکري علومو له استادانو او د حربي پوهنتونو لـه تعلیمي نصابونو څخـه استفاده وشي.

داچې مجاهـدین اوس پداسـې وضـعیت کـې نـدي چـې د پـوځي روزنـې لپـاره دې حـربي پوهنتونونه، پوځي اګاډمی او تعلیمي غونډونه ولري، نو په کار ده، چې د پوځي روزنې دغه تشه تـر یـوه حـده د(مورچـل) د مجلـې لـه لارې ډکـه شي، چې پدې کار سره به له یوې خوا په پراخـه پیمانه په مجاهدینو او د ولس په ځوانانو کې د دښمن په مقابل کې پوځي وړتیا پیدا شي، او له بل لـوري بـه (مورچـل)یوازې د جهـاد د تـاریخ د توثیق یوه مجله نه وي، بلکې په رښـتیا بـه هـمـ یو (عسکري مورچل) او روزنتون وي.

مورچـــل: مورچلوالـــو، افغـــان ولـــس، او مجاهدینو ته څه پیغامـ لرئ !

شپونکی:مورچلوالو ته مې مشـوره داده ،چـې خپـل دغـه فرهنګـي مورچـل تـه ریښـتیني وارثان وروزي. او افغان ولس ته مې مشوره دا ده چې ای غیور ولسه! په ډېرې ګرمی کې مـو پـه لـوړه نیـولې روژه تـر مـازدیګره رارسـولې ده، ګورئ چې نه یې د ماشومانو په غولوونـو نغـرو ماته کړئ! او نـه یـې د زهـرو پـه غـوړپ.لږ صبر نور همـ په کار دی، الله تعالی به مو د اسلامي نظامـ او ریښتینې آزادی ارمان پوره کړي.

او مجاهـدینو تـه مـې پیغـامـ دادی چـې د جهـاد تـر څنـګ دعـوت او تربیـې تـه هـمـ زور ورکړئ، ځکه چې دا هغه ډګر دی چې دښمن لـه موږ څخه ورکې لا یو څو ګامه مخکې دی.

والسلامـ

